# کندهار

اتم کال

لومړۍ او دوهمه گڼه

۱۳۸۷ ش

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنگ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



نارنج ماڼۍ

د پښتو روزنې او پالنې سرلوړې ټاټوبې

استاد بېنوا:

# نیم ساعت دمخه

ستا په آرزو د اسکېرلي یتیم په څېر ژړېدم، اوښکي مي د وصل په لټون پسې هر لور ته لالهانده بهېدلې ...
یو ازي زما د زړګي پاڼه ستا د محبت د ثبت لپاره په کوګل کي غوړېدلې پرته وه ...
کله کله به مي په لایتناهي فضا کي ستا د میني هغه نرم آواز اورېده، چي زړه یې ستا وخوا ته بللی وم.
زه او ټول موجودات مي ستا د راتلو په انتظار کي بلل، ستا په خیال مي سترګي سره ورغلې ...
ته مي ولیدې چي د میني کتاب دي غوړولی او ما ته دي پخپل معصومانه او له میني ډک تبسم سره وکاته، د ځان خوا ته دي وبللم، ځو واره دي د هغه کتاب دا جملې راته تکرار کړې : "زه تا پېژنم، د میني اور، د وصل آرزو".
آه! هم هغه نیمه شپه ده، فقط دېرش دقیقې تېري سوي دي. بیا ته نه یې ستا پر ځای په دې توره خونه کي بېله خپل غمګین زړه بل څوک را سره نسته.
یوه نه سوم چي څه و؟
دا خوب و که خیال، چي ستا په دیدار یې مشرف کړم؟
کشکي ټول ژوند همدا خوب وای.
آه! نیم ساعت دمخه.

### هغه نسته دا هم

| | |
|---|---|
| وصل نه سوم په ژوندون کي | نه مي مرګ سو په بېلتون کي |
| زړه مي سوځي په لړمون کي | هغه هم نسته دا هم |
| نه د اوښ په پېټي بار یم | نه مرغه غوندي بیدار یم |
| اوښ مرغی ولاړ پر لار یم | هغه هم نسته دا هم |
| یا په نېغ ټکر ټکر وای | یا غلیم باندي زه بر وای |
| یا بې بخته بختور وای | هغه هم نسته دا هم |
| نه د بل زړه په ما جوړ سو | نه مي خپل زړه په چا سوړ سو |
| ځوان جهان زړګی مي زوړ سو | هغه هم نسته دا هم |
| نه پر مځکه ښخ سوم لاندي | نه مي څه وکړه پرې باندي |
| زمانه راپوري خاندي | هغه هم نسته دا هم |
| نه مي ژبه خپل کړم کړه | نه ویل کول مي سم کړه |
| نه مي ډېر نه مي لږ کم کړه | هغه هم نسته دا هم |
| نه هیڅوک پر ما شیدا سو | نه مي ځان مین پر چا سو |
| نوم مي ځکه بېنوا سو | هغه هم نسته دا هم |

بسم الله الرحمن الرحيم






# کندهار

علمي . تاریخي. ادبي او ټولنیزه مجله

مؤسس
محمدولي زلمی

سرپرست چلوونکی
عبدالمجید بابی

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان
عبدالقدیم پتیال
مطیع الله روهیال
محب الله اسحاقي

کمپیوټر چاري
م. روهیال

پته
د اطلاعاتو کلتور ریاست
علامه حبیبي لواټ
د کندهار مجلې دفتر

د امتیاز څښتن: د اطلاعاتو کلتور ریاست

دریمه دوره
اتم کال، لومړۍ - دوهمه، پرله پسې ۴۶ - ۴۷ مه
وری - چنګاښ (۱۳۸۸ ش)

## ځو ضروري یادوني

* کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
* کندهار مجله د مجلې د ټاکلي لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
* را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کیږي.
* هره لیکنه د لیکوال خپل نظر ښکاره کوي.

په هیواد او دباندي کې د مجلې بیې

| |
|---|
| هیواد :- ۲۰ - افغاني |
| پاکستان :- ۲۵ - کلداري |

## کلنی ګډون

| |
|---|
| هیواد :- ۱۲۰ - افغانۍ |
| پاکستان :- ۲۰۰ - کلداري |
| نور هیوادونه :- ۸۰ - امریکایي ډالره |

# فهرست




# کندهار

ستاسې مجله ده، په خپلو لیکنو، نظرونو او وړاندیزونو یې ونازوئ

# مېرني دي چي یادېږي ...

کندهار مجلې ته د ویاړ خبره ده، چي یو ځل بیا پخپلو پاڼو کي د دې سیمي د دوو تنو نومیالیو او وتلو څېرو د پېژندني او یادوني تر څنګ په درنښت سره د دوی د ویاړلي ژوندانه په اوږدو کي د تلپاته اتلولیو په اړه مطالب خپروي. دا نومیالۍ څېرې د داود خان هوتک او د جګړو د ډګرونو د اتل بابوجان بابي څخه عبارت دي. چي څو ورځي دمخه یې په کندهار کي د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د فرهنګي هڅو او په دې برخه کي د راپیل سوو زیارونو او نوښتونو په لړ کي علمي او څېړنیز سیمینارونه جوړ سوه.

سیمینارونه چي په پرله پسې دوو ورځو کي دایر سوه لومړۍ ورځ د داود خان هوتک د زوکړي څلورسومي کالیزي ته وقف سوې او دوهمه ورځ یې د بابو جان بابي له خوا د شها او ګلان په نوم د مشهوري کیسې د نظمولو د درې سوومي کالیزي سره تړاو درلود، چي د ولسمشر په پیغام سره پیل او په فرهنګي او ښوونیزو چارو کي د دوی د مشاور وزیر تکړه څېړونکي سرمحقق زلمي هیوادمل پر ګډون او همغاړیتوب سربېره یې د مرکز، یو شمېر ولایتونو او لوی کندهار څخه د پوهانو، قلمي مخورو او زیات شمېر مینه والو سره د شتون ویاړ درلود، د دې سیمینارونو په اوږدو کي د ولسمشر په پیغام کي د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د فرهنګي هڅو ستاینه سوې وه.

د ورته څېړنغونډو دوام او بقا یې د فرهنګي ستنو د پیاوړتیا لامل بللې وه.

دا ورځي ځکه له علمي ګټو څخه ډکي وې چي په هغو کي د یادو سوو نومیالیو د ژوندانه پر ببلابېلو اړخونو د رڼا اچوني تر څنګ دا فرصت هم را پیدا سو چي په هغه کي د هیواد د وتلي ژورنالیست او قلمي مبارز اروابناد محمود طرزي د ویاړلي ژوندانه او د خپلواکۍ او ټولنیز سمون لپاره په سراج الاخبار کي د هغوی د مقالو او اغېزو په اړه هم پوهانو نوي او ژوري څرګندوني واورولې.

په دې توګه د نورو وختونو په څېر دا ځل د درو تنو حقدارانو د لوړ شان او په ټولنه کي د دوی د لوړ موقف او ځانګړي درنښت ته د سر ټیټېدو په موخه دا ډول زیارونه د ستاینې وړ او د اوسني نسل د هر یوه په ځانګړې توګه څېړونکو او فرهنګي سړیو او کړیو دنده او مسئولیت دئ.

د کندهار مجلې چلوونکي هیله لري، چي دا ډول هڅې عامي او د ټولو حقدارانو تر درشله اوږدې او د هغوی د ژوندانه د لا ځلېدو او سپېڅلو اروحونو د خوښۍ لامل او د ځوانانو او ځلمیانو په زړونو کي و هغوی ته د درنښت او پاملرنې د بقا لپاره لاري پرانیزي.

په [illegible] هیئت

# د افغانستان د اسلامي جمهوريت د جمهور رئيس پيغام

دا څو کاله پرله پسې د کندهار د ولايت مقام او د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست د کندهار د فرهنګيانو په همکارۍ، هر کال د کندهار د علماوو، ملي او فرهنګي مشرانو د کاليزو په مناسبت يادغونډې، کنفرانسونه او سيمينارونه جوړوي. پوهان او فرهنګيان ورته رابولي. له کابله هم فرهنګي هيئتونه ګډون پکښې لري. زموږ ځوان فرهنګيان د خپلو نيکونو په کارنامو خبروي، له پخوانيو علمي او فرهنګي تجربو په استفاده نوو هڅو او د زمان له شرايطو سره برابرو تجربو ته زمينه برابروي.

زه د دا ډول علمي او فرهنګي غونډو جوړول ستايم او د کندهار د ولايت مقام، د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست او د کندهار فرهنګيانو ته شاباسي وايم، چې سږکال يې د دوو ورځو په ترڅ کې د دريو فرهنګي شخصيتونو د يادغونډو د جوړولو تکل کړی دئ.

١. د ملي او فرهنګي شخصيت داود خان هوتک د زوکړې د څلورسومې کاليزې يادغونډه.
٢. د ملي او فرهنګي شخصيت بابوجان بابې د شها او ګلان د فوکلوري کيسې د نظمولو د درې سومې کاليزې يادونه.
٣. د هيواد د نوميالي سياسي او فرهنګي شخصيت علامه محمود طرزي د مقالو د مجموعې د نوي چاپ مخکتنه.

زه هيله لرم چې د غونډو ګډونوال د دغو دريو شخصيتونو د کارنامو په باب ښه او په زړه پوري معلومات زموږ ځوانانو ته وړاندې کړي.

په کابل کې علمي غونډې او سيمينارونه ډېر جوړېږي، خو زموږ موسسات لا پر دې نه دي برياليي سوي چې دې غونډو ته د ولاياتو فرهنګيان راوبولي، نو ځکه موږ دا څو کاله پرله پسې په ولاياتو کې د سيمينارونو د جوړولو کار شروع کړی دئ. زما غوښتنه دا ده چې د ولاياتو په سيمينارونو کې د مباحثو، مقالو او خبرو ډېره موقع د هماغو سيمو علماوو او فرهنګيانو ته ورکړل سي، دا ځکه چې د دې ولايتي سيمينارونو عمده هدف د هماغو ولاياتو د ځوانو فرهنګيانو روزل دي.

په پای کې ستاسو د غونډو برې د لوی څښتن تعالی له درباره غواړم او د دې نېک اقدام مبارکي درکوم.

حامد کرزی
د افغانستان د اسلامي جمهوريت جمهور رئيس

# د کابل پوهنتون پیغام

**د لوی خدای په نامه**

شپه په ستورو ورځ په لمر باندې ښایسته وي
هـــر بڼ په ښـــو ګلونو رنګـــینه وي

هـــغه قوم به د بقا، حریت دعـــوی کـــړي
کـــارنامې یې چې په پاڼو نوشـــــــته وي

د هوتکي غورځنګ او د ادب، فرهنګ او سیاست ځلانده ستوري داود خان هوتک د تلپاته کارنامو د څلورسوم تلین یادغونډې ته د کابل پوهنتون پیغام!

وایي تاریخ د انساني ټولنو د ژوند هینداره ده، په کومه کې چې د ټولنو د شخصیت او هویت څرګندونه کیږي او ګټه یې هم راتلونکو نسلونو ته دا ده، چې له ناوړو پیښو څخه یې خلک عبرت اخلي او په ویاړونو یې ویاړي او پخپل راتلونکي کې یې د لارښود په توګه کاروي.

زموږ د هیواد تاریخ هم د دې ډول ډېرو لوړو ژورو شاهد دئ. دې هیواد داسې شخصیتونه هم روزلي دي چې په کارنامو یې د دې هیواد بچیان ویاړي، درناوی یې کوي او د خپل تاریخ برم یې بولي.

د دغو نامدارو شخصیتونو او مثبتو بهیرونو څخه یو هم داود خان هوتک او هوتکي غورځنګ دئ، چې ننني سیمینار یې د کارنامو د څېړلو په هیله پرانیستل سوی دئ.

نوموړی د میرویس نیکه د افغاني او تاریخ سازي کورنۍ غړی و، چې دې کورنۍ نه یوازې په بېلابېلو برخو کې د افغانانو ښه پالنه کړې، بلکې د پښتو ژبې ښه لیکوالان، ادیبان او نومیالان یې پخپل متن کې درلودل او په دې دوره کې د پښتو ژبې ځواکمن شاعران او ادیبان وروزل سول. لکه: سیدال خان ناصري، ملا پیر محمد، بابوجان بابی، داود هوتک، ملا نور محمد غلجی او نور.

ځکه نو وایو دا ورځ زموږ د هیواد بلکې د سیمې او نړۍ د یوې نامتو کورنۍ د لیکوالو او سیاست والو، د رښتینو ښوونکو، ادیبانو او مؤرخانو او بالاخره د پیاوړ هنرمندانو او متفکرو افغانانو د لمانځنې ویاړمنه ورځ ده.

کله چې پردو پر دې مقدسه او سپېڅلې سیمه ناوړه واک ته رسېدل غوښتل او کله چې بیا برلاسي هم سول نو خلکو او ولسونو ته یې په سپکه وکتل او د متجاوزینو په څېره کې یې عمل درلود، نو دلته و، چې د افغانانو زوړ برم راڅرګند او میرویس نیکه د یوه فقیر مجاهد او هیوادپاله وګړي په توګه راپاڅېدی او د خدای په توکل او د خلکو په ملاتړ یې له هیواده د دوی د منګولو د غوڅولو هڅې پیل کړې.

میرویس نیکه د افغانانو د ملي آزادي غوښتونکو او وطن پالونکو لوی لارښود او نیکه، او حضور یې د افغانستان او سیمي د خپلواکۍ غوښتونکو ولسونو بل مشعل و، ځکه نوموړی د الله ﷻ د نېکو بنده ګانو او د وخت د ښکېلاکګرو پر ضد د ملي اتلانو څخه ګڼل کېږي.

هغه یو وخت و، چې د سپېڅلي طبیعت په غېږ کې یې د قدرت د مناظرو ننداره کوله او په شاعرانه احساساتو یې عاطفه نغښتل او خپلو همزولو ته به یې د پیغام په توګه ډالۍ کول، چې ملي پیغامونه یې درلودل او د هیلو تخمونه یې هري خوا ته لونل، کله چې د امید ستر ګي یې وغړولې، هیلو او اسرو یې په زړه کي غځوني وکړې نو د خپلواکۍ، ژوند، عزت، پت، یووالي، لوړتیا او پرمختګ انګازې یې ورو ورو په ذهن کي په خپرېدو سوې.

د ننګ تورته به مي هر هلې وي
که پسله مرګه پر مزار راسې مینه

که د هوتکیانو دې جریان له یوې خوا د آزادۍ غوښتني افکار درلودل او د عمل په میدان کي یې دغه افکار پلي کړل، نو له بلي خوا یې اتحاد او یووالي، پرمختیا، دیانت، علمیت او کتابت ته ښه خدمت وکړ، چې د نوموړي غورځنګ دا د توري او قلم تلپاتیه یادګار خپلي هغې هیلي ته ورسېد، چې د مړاني پر میدان او د پردي یرغلګرو پر ضد د آزادۍ بېرغ اوچت او سوبه یې په برخه سوه.

که د افغانانو تاریخ ته څه په ځیر پام وکړو، تر هوتکي پاڅون پوري داسي لړ پېښه سوې ده، چې د ربښتیني پښتني سیاست پر بنسټ دي کوم حاکمیت جوړ سي.

په ۱۷۰۹ زېږدیز کال کي چې هوتکي ملي حکومت جوړ سو، کندهار د افغانانو تر ټولو ستر اقتصادي، کلتوري او تجارتي مرکز و، هوتکي پاڅون یوازي مذهبي نه و، بلکې د دې پاڅون سره د خپل هیواد غم و، چې له پردیو څخه یې پاک او د خپلو افغانانو حاکمیت پر واکمن کړي. چې دا حرکت یو بشپړ سیاسي، هدفمند او پر ملي فکر او تدبیر ولاړ خوځښت و.

موږ افغانان یو او هیواد مو افغانستان دئ، نو همدا مفکوره زموږ لپاره د ښه تدبیر او د ملت پالني د مفکورې د ملا تیر جوړوي. مانا دا چې له میرویس نیکه یې زده کړو چې خپل هیواد او خپل حاکمیت ولرو. که غلجي یو که دراني، که شینواري که اپرېدي، که ترکمن یا ازبک و هزاره و بلوڅ، ښایي د ودان افغانستان په مټ خپل شتون ثابت کړو.

دا چې د هوتکیانو دوره بیا هم داسي سپړلو ته اړتیا لري چې د هغه پر بنسټ ځوان افغانان وکولای سي مخ په وړاندي ګام واخلي، پخپل افغانیت وویاړي، او د تاریخ د دغي بریالۍ تجربې رڼا ته خپله راتلونکې جوړه کړي، پوره باور لرم چې په روان سیمینار کي به د افغانستان او آسیا د دې ستر جریان پر بېلابېلو ابعادو او افکارو د پوهانو له خوا رڼا واچول سي تر څو زموږ ګران هیوادوال د هغوی په هکله لازم معلومات تر لاسه کړي او له معلوماتو څخه یې ګټه واخلي.

د کابل پوهنتون رهبري او ټول استادان دغه یادښت ته د قدر په سترګه ګوري او د عالمانو، پوهانو، شاعرانو، لیکوالو او ملي اتلانو پر خپل وخت یادول او ولس، او راتلونکو ته یې وروپېژندل پر ځای او ګټور اقدام بولي، او د مشرانو، مسئولینو او په دې سیمینار کي د کندهار زیدخله چارواکو ته د دغه ډول نورو بریالیتوبونو دعا کوي.

په درناوي

# د افغانستان د علومو اکاډیمۍ پیغام

په لسمه لیږدیزه پیړۍ کې د هرات تیموري حکومت د خپل منځي اختلافونو، شخړو، جګړو او د بهرنیو یرغلونو په نتیجه کې رانسکور شو، چې له دې رانسکورېدني سره علمي او فرهنګي بهیر هم له رکود سره مخامخ او رامنځته شوی مدنیت له منځه یووړل شو. دې ناوړه حالت شاوخوا دوې پیړۍ دوام وکړ، چې وروسته د دولسمي هجري پیړۍ په لومړیو (۱۱۱۹ هـ ق) د میرویس نیکه په مشرۍ په کندهار کې یو ملي افغاني حکومت جوړ شو، د دې حکومت په جوړېدو او رامنځته کېدو سره یو ځل بیا زموږ په هیواد کې د علم، ثقافت او فرهنګ بهیر هم یو څه پیاوړی شو. میرویس نیکه چې پخپله هم یو عالم او فاضل شخص و، ډېر عالمان او فاضلان یې پخپل دربار کې راټول کړي وو، تر هغه وروسته یې زامنو په ځانګړې توګه د شاه حسین هوتک د واکمنۍ په دوره کې کندهار د علم او فرهنګ د پراختیا لوی مرکز شو. د نوموړي په دربار کې زیات شمېر پوهان او ادیبان راټول شوي وو، علمي، ادبي غونډې او بحثونه به کېدل، عالمان او پوهان به د کتابونو تألیف او ژباړلو ته هڅول کېدل، د پښتو ادب ډېره ستره او ارزښتناکه ادبي پانګه (پټه خزانه) هم د همدغه دورې د غوره بېلګې په توګه یادولای شو.

د هوتکو د دورې په نامتو دیني عالمانو او نومیالیو فرهنګي شخصیتونو کې نازو انا، بي بي زینب، ملا یارمحمد هوتک، ملا پیرمحمد هوتک، ملا زعفران هوتک، ریدي خان مومند (د محمود نامې ناظم)، ملا نورمحمد غلجی (د نافع المسلمین مؤلف)، سیدال خان ناصر، ملا یونس توخي، محمدداود هوتک او د هغه د زوی محمد هوتک (د پټې خزانې مؤلف) نومونه د یادونې وړ دي.

داود هوتک د دغې دورې له نومیالیو علمي، فرهنګي او نظامي شخصیتونو څخه دئ، چې توره او قلم یې غبرګ چلولي دي. د کندهار ولایت مقام، د اطلاعاتو او فرهنګ د ریاست او د ځوانو فرهنګیانو، چې اوس یې په کندهار کې د دغه نومیالي شخصیت د زوکړې د څلورسومې کلیزې د نمانځنې او د بابو جان بابې د شها او ګلان نومې کیسې د تألیف د ۳۰۰ کلیزې د نمانځنې غونډه جوړه کړې، د افغانستان د علومو اکاډیمي د دغه نېکې فرهنګي هڅې ستاینه کوي او په دې هیله او تمه ده، چې د دغې څېړنغونډې په ترڅ کې به د لیکوالو له خوا د نومیالي فرهنګي شخصیت داود هوتک او د شها او ګلان کیسې د لیکوال او د اثر په باب د مقالو او ویناوو په ترڅ کې ډېر تیاره ګوټونه روښانه شي. موږ د دغې علمي څېړنغونډې جوړوونکو ته د نېکو هیلو د وړاندې کولو په ترڅ کې مبارکي وایو او په راتلونکي کې ورته د لا بریالیتوب هیله کوو.

په درنښت
څېړنوال عبدالباري راشد
د افغانستان د علومو اکاډیمۍ رئیس

# د کندهار پوهنتون پیغام

د ویاړ او خوښۍ ځای دئ، چې د افغانستان د اسلامي دولت د فرهنګي پالیسۍ په رڼا کې د هیواد د نورو نومیالیو، عالمانو، ادیبانو، شاعرانو، تاریخ پوهانو او ملي قهرمانانو د یادوني په لړ کې دا دئ نن د دې سیمې او هیواد د هغو دوو تنو نومیالیو هر یوه داود خان هوتک او بابو جان بابۍ چې زموږ د ګران هیواد او سیمې په کچه د یو خاص شهرت لرونکي دي او د پښتو په ادب او تاریخ کې یې پخپلو کارنامو سره زرینې پاڼې پرې ایښې دي او د پېړیو په تېرېدو سره به نور هم راتلونکې نسلونه د دوی په ملي مبارزو، تاریخي او ادبي کارنامو سره ویاړي او په ډېره سرلوړۍ سره به یې یادونه کوي سیمینارونه جوړ سوي دي.

داود خان هوتک د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتک پلار دئ، داود خان هوتک د خپل وخت تکړه عالم او د هغه مهال نومیالی پوه و، دوی د خپلې کورنۍ په غېږه کې خپل زوی محمد هوتک د کندهار د اوسني ښار سره څرمه د کوکران په کلي کې وروزی او تر هغه سرحده یې ورساوه، تر څو هغه بیا پخپل وار سره د پښتو او پښتنو لپاره د پټې خزانې په څېر یوه درنه او ستره تذکره په یادګار پرې ښوده، دا چې د داود خان د زوکړې څخه (۴۰۰) کاله تېرېږي، مګر دا چې دوی د وخت پېژندل سوی عالم او د یو داسې زوی پلار و، چې پښتانه او پښتو ادب ورباندې ویاړي او همدا علت دئ چې دوی لا تر اوسه د ولسونو په زړونو کې ځای لري او د دوی د زوکړې یادونه کوي.

بابوجان بابۍ هم د میرویس نیکه سره تل په سفر او حضر کې ملګری و، په ټولو ملي جرګو کې یې د میرویس نیکه ملګرتیا کوله، په همدې توګه د وخت د حاکمانو په ځپلو کې یې د میرویس خان سره اوږه پر اوږه ملتیا کوله او د ګرګین د ځپلو په وخت یې د جګړو د میدان ملګری و، او وروسته بیا د شاه محمود هوتک، شاه اشرف هوتک، او شاه حسین هوتک سره په ټولو جګړو کې مل او ملګری پاته سوی او په توره کې یې مېړانه ښکاره کړې ده، چې د هغې زمانې ډېر توریالي ورته حیران وه. برسېره پر دې چې د جګړې د میدان مېړنی ګڼل کېږي، هغه ښه ادیب او پیاوړی لیکوال و، د شها او ګلان کیسه چې (۳۰۰) کاله دمخه یې په نظم واړول چې په دې توګه د پېړیو تر تېرېدو وروسته اوس هم د خلکو په زړونو کې ځای لري، دا چې موږ ټول د دوی په تاریخي کارنامو او ادبي شهکاریو ویاړ کوو، یاد دې ژوندی وي او د ګران هیواد په تاریخي لمن کې یو ځل بیا د ملي واکمنۍ قهرمانانو ته سترګې پر لاره یو، تر څو زموږ دا غیرتمند ولس په یوه آواز د آرام او هوسا ژوند خوا ته راوبولي، د جګړو او ورور وژنې ټغر د دې غیرتي خاوري څخه ټول کړي، د پښتو ژبې او ادبیاتو په برخه کې د نورو سیالو ژبو سره څنګ پر څنګ د پرمختیا بهیر ته لاره پرانیزي، موږ د دې علمي سیمینار جوړونکو او سازمان ورکوونکو ته کورودانۍ وایو او په دې لاره کې یې د زیاتو بریاوو هیله کوو.

په درنښت

دوکتور حضرت میر توتاخېل

د کندهار پوهنتون رئیس

## په کندهار کي د داود هوتک د ۴۰۰ مي کليزي او بابو جان بابي د شها او ګلان نومي منـــظومي کيسې د ليکلو د ۳۰۰ مي کليزي په وياړ دوو غـــبرګو ســـيمينارونو ته

# د استاد محمدمعصوم هوتک پيغام

دسيمنار درنوبرخه والو!

اسلام عليکم

د خوشالۍ خبره ده چي د کندهار په لرغوني ښار کي د "داود هوتک د زوکړي د ۴۰۰ مي کاليزي او د شها و ګلان د کيسې د نظمولو د ۳۰۰ مي کليزي سيمينارونه" جوړېږي. دا ډول سيمينارونه او غونډي له خپلو اسلافو او د هغوی له فرهنګي کارنامو سره د نوي ځوان نسل د بلديت او پر څنګ يې په مشخصه برخه کي د نوو څېړنو د بشپړولو په کار کي خورا ډېره ګټه رسولای سي. ځکه يې هم هر کلي پر قلمدوستانو باندي لازم دئ او هم يې پکښې برخه اخيستنه.

زه له بده مرغه په دغه مشخصه موضوع کي د ويلو نوي خبري نه لرم او د دې کار علت خو په لومړي قدم کي زما خپله نيمګړتياوي او بل عامل به يې دا هم وي چي د نيمه خوا خوځښتونو او په هغو کي د شاملو اشخاصو د کار او زيار په باب ليکلي مواد پر نېست باندي حساب وي. ميرويسي خوځښت دخپلو ارمانو تر پوره کېدلو پوري پاته نه سو.

داودخان هوتک په ميرويسي خوځښت کي شامل سړی او د ملي قايد حاجي ميرويس خان نيکه نزدې همکار و. ده د توري او سياست پر څنګ يې د قلم توښه هم درلوده او دانشمند زوی محمدهوتک خو يې خپل ټول ژوند د قلم مشغولا ته وقف کړی و.

د شها او ګلان د کيسې ناظم، بابوجان بابی هم که د توري پر ميدان اتل مېړنی و، خو د ادب پر ډګر يې نوښتګر او پياوړی قلم ورسره درلود.

له بده مرغه پښتانه د خپل غفلت او بې پروايي له اسيته د خپلو اسلافواو وياړونو په باب لږ ځان خبروي. زه به دا يو څو يادوني د سيمينار د وخت په پام کي نيولوسره دلته بيان کړم او تاسي به وګورئ چي موږ پښتانه څومره د خپل تاريخ اواسلافو په باب بې پروا يو.

د داود خان هوتک اولادې زموږ په همدې کندهار کي پېړۍ پېړۍ ژوند وکړ، خو موږ يې د کور او کورنۍ په باب درې سوه کاله وروسته خبر سوو او که د پنځوسمو شمسي کلونو په دوران کي د ارواښاد محمد ابراهيم عطايي يادونه، د ارواښاد محمديوسف ويران لارښوونه او تلاښ او پر پښتو باندي د دوو زيار کښو مينوملګرو ښاغلو استادحبيب الله رفيع او سرمحقق زلمي هيوادمل سترياوي او په وچو دښتو کي پلي مزلونه نه وای، موږ به اوس د دغه خاندان په باب هيڅ راز ليکلي مواد نه درلودلای. د دوی د هڅو نتيجه ده چي موږ اوس هم مو نيکه پېژنو او هم يې احفاد و اولاده رامعلومه ده.

د ملي قايد میرویس نیکه د زیارت په څنګ کي د ده لمسیان و کړوسیان له پیړیو راهیسي اوسي. په (۲۰۰۶ع کال) زه د ځینودوستانو په ملګرتیا او لارښوونه د دوی کورته ورغلم. د خواشینی خبره وه چي دوی پخپله لاهم د خپل خانداني تسلسل په باب دقیق معلومات نه درلودل او کله چي یې ماته د وروستیو مشرانو د نفوسو پاڼي راوښوولې، ما د هغو په مرسته د دوی خانداني شجره په دقیقه توګه ورولیکله او په دې برخه کي مي خپل معلومات له ښاغلي همت سره هم شریک کړل او هغه خپاره کړل.

د میرویس نیکه د ورور میر عبدالعزیز اولاده په کندهار کي له پیړیو پیړیو راهیسي اوسي خو د هغو په باب معلومات څه دپاسه درې سوه کاله وروسته ما په کندهار مجله او "سل بګړی یو پوړني" کي نشر کړل.

د شها و ګلان د کیسې د ناظم، بابوجان بابي پراخه علمي او فرهنګي کورنی د کندهار ښار په زړه کي اوسي خو تر وروستیو کلونو پوري په نشراتو کي د دوی په باب لږ مواد موندل کېدل او هغه چي اوس خپاره سوي دي هم، په هیڅ ډول کافي نه دي.

له دې یادونو څخه مي مراد دا دئ چي زه د دغه راز سیمینارونو اوغونډو اړتیا وینم او هیله مي ده په وطن کي د اوسېدني په ویاړ ویاړمن ځوان فرهنګیان د دغه راز نیمګړتیاوو په ډکولو کي خپله انرژي او امکانات ونه سپموي.

له موقع څخه په استفادې سره غواړم یوې بلې فرهنګي اړتیا ته هم اشاره وکړم او هغه دا چي د افغانستان په جنوب لوېدیځه خواکي د څه دپاسه دریو لسیزو سختي جګړې په نتیجه کي د ښووني او روزني رسمي او دودیزه لړۍ ګډه وډه سوې ده او دا هم یو انکار نه منونکی واقعیت دئ چي د ټول افغانستان په تناسب دغي حوزې د جګړې ډېر درانه مصیبتونه زغملي دي او لا یې زغمي. دې کار بیا د پخوانیو مشرانو علمي هستیو تر وفات وروسته د علمي او فرهنګي هستیو د یو په بل پسې راتګ او تداوم په سلسله کي خورا خطرناکه خلا ایجاد کړې ده. دغه راز خلا په نورو فرهنګي حوزو کي هم محسوسه ده خو د جنوب لوېدیزي حوزې دا خلا پسې پراخېږي او غتېږي او هغه متوازن انکشاف ته صدمه رسوي چي د دغي سیمي ځوانان یې د خپلو نورو وطنوالو پر څنګ په حقه او په طبیعي و تاریخي لحاظ مستحق دي. نو زه په اول ګام کي د دغي پراخي فرهنګي حوزې ځوانان خپلو طبیعي او تحصیلي حقوقو ته او پر څنګ یې خپل تاریخي رسالت ته متوجه کوم اوله دې سره سم له واکمنو مقاماتو څخه په ټینګه غواړم چي د دغي جنګ ځپلي حوزې د ځوانانو خپل تحصیلي حقوق پایمال نه سي. دوی ته دي د کورني او بهرني تحصیل پراخي زمیني برابري سي او داسي پېښه نه سي چي خدای مه کړه حقوق یې په نورووخوړل سي.

که خدای مه کړه زما دا اندېښنه د واقعیت جامه واغوندي نو به پښتانه د دغي فرهنګي حوزې د علمي و تاریخي نقش مړ ګ پخپلو سترګو مشاهده کړي او د دې مشاهدې د مسئولیت پېټی به پخپله د دوی پر اوږو پروت وي.

نور مو وخت نه نیسم او په هیواد کي د پوهي د پراخېدو او د جهل و جګړې له مصیبت څخه د خپلو ځوانانو د ژغورني په هیله خپله خواله پای ته رسوم.

محمدمعصوم هوتک
اوکویل، کاناډا
۲۶جون ۲۰۰۹ع

ډاکټر عبدالرازق پالوال

# ادبي، علمي او تاريخي پټه خزانه

پټه خزانه د پښتو ادبیاتو تاریخ دئ، چي عموماً ادبي تذکره بلله کېږي. د دې لیکوال محمد د داؤد زوی دئ. په پخوا زمانه کښي د خلکو نوموړنه یوه ستوي ول، خو په اوس کښي غبرګ یا آن درې ګون نوموړنه کارول کېږي. ځکه نو موږ د پخوانیانو و نومونو ته د دوی قبیلوي نوموړنه ورکنجوغه کوو، لکه خوشحال خټک، حنان بارکزی، او محمد هوتک د نورو څرګندونو له پاره ئې په خپله پټه خزانه وګورئ!

پر پټي خزانې باندي ځوان عبدالحي حبیبي هراړخیزه، ژوره او پسروره، پلټنه، ګروېږنه او څېړنه کړې ده. دا چي ده د خپل ګران عمر اوږ کلونه و دغه کار ته وقف کړي ول، له پټي خزانې سره د ده د ډېري میني ښکارندوینه کوي.

پټه خزانه یو داسي مهم ادبي او تاریخي کتاب دئ، چي ډېری پښتانه او په سرې سره ئې کندهاریان، له جهالته ځخه په قدر او ارزښت پوهېدلي نه دي. که ئې دوی په اهمیت پوهېدلي وای، یا پوهېدلای دغه کتاب به ئې په ښه اعلی صحافت سره په هنري نقش ونګار سره، چي له موضوع سره به ئې مناسبت لرلای، چاپ کړئ وای – ښه ټینګه ښایسته وقایه به ئې ورکړې وای چي د هر چا سترګي ور اوښتلای، او هم داسي ځني پوهېدلای چي په دې خزانه کښې زر ، زېور، یاقوت او زمرد، لال، پېروژې، او لاجورد ښخ دي – ای ارزښتناکه ماناوي پکښې ښخي دي، خو د کشف او راکښني فهم غواړي.

که موږ د دې خزانې د مرغلرو، دُر ؤ مرجان په ارزښت پوهېدلای، اوس به لوستو کسانو هر یوء یوه نسخه پټه خزانه په کور کښي لرلای. که موږ د دې خزانې په اهمیت پوهېدلای، چي دغه کتاب د پښتو ادبیاتو لاقیمته تاریخ دئ، اوس باید د پوهنتون د پښتو ادبیاتو د څانګي په درسي نصاب کښي اصلي تاریخي متن وای.

د دې له پاره څو د پټي خزانې ارزښت لا نور هم راڅرګند سوئ وي، زه په دغه اړوند دوې ښایېدني در وړاندي کوم. یوه ښایېدنه د عمومي پټي خزانې په اړوند ده، چي ماهیت ئې څه دئ، او د څه له پاره دئ؟ بله ښایېدنه خاصه ده، او پر دغي مختصي لارې باندي تلل به و موږ ته څه پای موندني او پایلامې لرلي وي.

لومړی ښایېدنه دا ده، چي محمد بن داؤد دغه پټه خزانه د یوې مفکورې پر اساس باندي کښلې ده. ای ده په دې کښي مرامونه او اهداف لرلي دي. یو دا څو ده د دغه اثر په وسیله سره و پښتنو ته ویاړ، شان، او لوړاوی ور په برخه کړئ وي. بل دا چي ده د دغه کتاب په وسیله سره په خلکو کښي د ملي احساس ، فهم او شعور غوټې غوړولي وې. ای په پښتنو کښي ئې د وخت له شرایطو او غوښتنو سره سم ملي یووالئ هڅولئ او ټینګ کړئ وي. په خلکو کښي ئې د آزادی روحیه پیدا کړې وي. درېیم دا چي یوه د سیالني مهمه ادبي خلا ئې ډکه کړې وي چي د ثقافت (کلتور) یو په زړه پوري ښاخ دئ. ښایي

محمد به دغه ټول اهداف په شعوري توګه سره تر سره کړي نه وي، بل لا د عمومي روحيې تحت الشعور څرګندونه دي ئې وي.

آيا دغه عقيده يامفکوره Doctrine، او تخيل په پټه خزانه کښې سته، يا که نسته؟ نو که په پټه خزانه کښې دغه مفکوره (دوکتورين) د خپلو افرادو جامع، او د اغيارو مانع وي، نو لومړنۍ ښايېدنه ښايولې سوې ده او که داسي نه وي نو به دغه ښايېدنه رد سوې وي، يا به ناپرېکړنده پاته وي.

د قضاوت له پاره ئې پټه خزانه په يوه ځغلند نظر سره ګورم، محتويات ئې و تاسو ته د فيصلې او قضاوت له پاره در وړاندي کوم.

دوهمه ښايېدنه دا ده، چي پټه خزانه و موږ ته د پښتنو د ورک او تاريک تاريخ په بېلابېلو مواردو کښې د روښنا څرک راکوي، چي ښايي په ګروهېړني سره ئې له جزء څخه و کل ته ورسېږو، يا کيسي وي چي ګوندي ئې و غوړولای سو. البته په نورو اسنادو او شواهدو سره. که مو داسي وکړلای سوای، نو دوهمه ښايېدنه هم ښايولې سوې ده.

د دغي ښايېدني د ښايوني له پاره په پټه خزانه کښې يوه خاصه قضيه Case تر څېړني لاندي نيسم. د پای موندنو د صحت او خطا قضاوت به ئې په تاسو پوري اړه لري.

د لومړنۍ ښايېدني د ښايولو له پاره بايد موږ پټه خزانه له بېلابېلو اړخونو او موضوعاتو له مخي څخه وازمويو، چي زه دغه کار اوس په ډېر سکوستي (مختصر) ډول سره کوم.

(۱) و پټې خزانې ته له زماني نوني څخه کتنه:

د دوهمي هجري پېړۍ له لومړنۍ نيمايي څخه رانيولې بيا د ليکوال تر همعصره شاه حسين هوتک پوري دغه يوولس پېړۍ زمانه احتوا کوي. څنګه چي پښتني ټولني د تاريخ په اوږدو کښې لوړي او ژوري تېري کړي دي، نو ئې په دغه کتاب کښې شاعران پرله پسې نه دي، بل لا په منځ کښې ئې لنډې او اوږدې تشاوي (خلاوي) gapes سته. څنګه چي په هر اړودوړ کښې ډېر کتابونه تباه سوي دي، او دا چي هغوی بيا قلمي خطي کتابونه هم ول، نو د دې هيله نوره نسته چي دغه تشاوي دي ډکي سوي وي.

(۲) و پټې خزانې ته له جغرافياوي نوني څخه کتنه:

په دغه کتاب کښې پښتيانا له ختيځه څخه تر لوېديځه پوري، د غرنيو درو د کلو، او د بېدياؤ د ښارونو په شمول غونډه احتوا کړه سوې ده. په لوېديځ کښې ئې د غوري شاعرانو څرک راکړئ دئ، په ختيځ کښې ئې د منځنۍ دورې د کلاسيکو شاعرانو څرک راکړئ دئ او د ختيځ او لوېديځ تر منځ ئې د دغو سيمو شاعران او شاعراني راپېژندلي دي. دغسي ئې پښتيانا سر تر پايه پوري تر خپل ادبي پوښښ لاندي راوستلې ده.

(۳) و پټې خزانې ته د شعري سبک له نوني څخه کتنه:

پټه خزانه د اشعارو د جوړښت، سبک، طرز او نوعيت له پلوه څخه پوره بډايه ده. په دې کښې يو شمېر داسي هوښګلونه سته چي د پخواني اصلي ملي طرز ښکارندوينه کوي. نور ډېری شعرونه عربي او دري (فارسي) دېواني جوړښت لري. له پخوانيو ملي طرزونو څخه چي و ځان ته بېل ځانګړي جوړښتونه لري عبارت د جهان پهلوان امير کروړ وياړنه، د شيخ ملکيار، شيخ بستان بړېڅ، ملا باز توخي، بهادر (بادورزي)، ملا محمدصديق پوپلزي، ملا نصرالدين اندړ، عبداللطيف اڅکزي، او سيدال ناصر او بي بي زينبې هوښګلونه بېلابېل ملي جوړښتونه لري.

د سپرو بدلو نمونه به ښايي له دې اسيټه څخه پکښې خوندي سوې نه وي، چي هغه داستاني بدلي او ډېري اوږدې وې. يوازي کسر به ئې پنځه – اووه بيته و.

(۴) و پټې خزانې ته د معنويت له نوني څخه

کتنه:

د جسامت له پلوه څخه پټه خزانه یو نسبتاً نری ډنګر کتاب دئ، خو د معنویت له پلوه څخه ئې د تلنې له پاره کاڼئ او ترازو نسته. دغه کتاب که په ټول مضامین او موضوعات احتوا کړي نه وي، خو بیا ئې هم ډېر څه احتوا کړي دي. د ډېرو مهمو موضوعاتو زړه او مغز ئې راکړي دي. په دغو کښې تاریخي موضوعات سته، دین، تصوف، عشق، ویاړنه، ویرنه (مرثیه)، حماسه (رزمیه)، پند (نصیحت)، طنز، داستاني، ساقي نامه، او هم نور څه پکښې راغلي دي. پټه خزانه یو داسي هوښګل بڼ دئ چي د هر فکر، د هر خیال او د هر ذوق راز – راز هوښګلونه وریکښې غوړول سوي دي او دا ئې بې ساري مزیت دئ.

(۵) و پټې خزانې ته له ژبنې نوني څخه کتنه:

دغه کتاب څه ګڼ شمېر ورک او نادر لغاتونه راخوندي کړي دي، چي که لیکوالان کار ځني واخلي خپله ژبه به ئې په اصلي لغاتو سره بډایه کړي وي، نه په جعلي نامأنوسه لغاتو سره. علامه حبیبي دغه پخواني ورک او نادر لغاتونه د کتاب له متن څخه ور اخیستي او د چاپي کتاب د پای څېړنو په وروسته کښې ئې د نادر لغات تر نامه لاندي له مخونو ښوولو سره کښلي دي. دغه ټول کار له تعلیقاتو سره له پټې خزانې سره د دې پوره مینه ښووي. دا ځکه چي دی ئې په قدر او اهمیت پوهېدئ. دغه نادر لغاتونه چي دی له متنه څخه را ایستلي دي شمېر ئې ۲۱۷ ته رسېږي.

(۶) و پټې خزانې ته د کتبي آثارو له نوني څخه کتنه:

په دغه اثر کښې له یو شمېر داسو مهمو کتابونو څخه اخستنه او یادونه سوې ده، چي اوس ورک او ضایع سوي دي. محمد څنګه پوهېدای سوای چي دغه کتابونه به بل کله نه وي او ضایع سوي به وي، خو د دې کتاب به وي، چي ډېر معلومات ئې ځني وراخستي وای؟ ښادروان علامه حبیبي دغه لرغوني کتابونه له متنه څخهٔ وراخستي او د تعلیقاتو په پای کښې د متن له مخونو سره لاړ کښلي دي چي شمېر ئې و ۴۵ کتابونو ته رسېږي.

و چا ته به ښایي پوښتنه ور پیدا سي چي دغه ګڼ شمېر کتابونه محمد څنګه چیري وموندلای سوای؟

د کندهار په زاړه ښار کښې چي اوس ئې یوازي د شاهي مانیو ځیني کنډوالې پاته دي، یوه لویه مدرسه یا لا پوهنتون ؤ (د لوی ډبرین لوښي د غاړي پر شاؤخوا باندي لیکنه)، چي مؤسس به ئې هم په اغلب احتمال سره د ښار بیا ودانوونکئ سلطان غیاث الدین غوري ؤ. دغه پوهنتون یو لوی کتابتون لاره، او هم په خپله شاه حسین په خپله شاهي مانۍ کښې د کتابتون خاوند ؤ (۱۳۳۹ : ۱۱۲) او محمد هم هورې مؤظف ؤ، چي د بادشاه شعرونه ئې ورکښل. نو خود به دی د نارنج مانۍ له شاهي کتابتون څخه هم اخستنه کوله. دغه دوه لوی کتابتونونه د نادرقلي افشار په تاړاک کښې له شاهي مانیو او غونډ ښاره سره، لتاړ او تباه کړل سول.

ښاد روان علامه حبیبي پر نوم ورکو مؤرخانو او د دوی پر آثارو باندي ښایسته ګوټې یو کتاب چاپ کړئ دئ، چي اساس ئې همدغه پټه خزانه ایسېږي. په دغي لیکني کښې علامه صاحب د یو سل و دوڅلوېښت (۱۴۲) مؤرخانو او یا د دوی د آثارو یادونه کړې ده (نوموړکي مؤرخین، حبیبي، دوهم چاپ، ۱۳۸۳).

(۷) و پټې خزانې ته د تاریخ له نوني څخه کتنه:

د دغه کتاب منثور متن او هوښګلونه و موږ ته د ملتان او شاؤخوا د لودیانو، د هند د لودیانو د ځینو غوري شاهانو او په سرې سره د هوتکي شاهانو او داسو نورو حالاتو لړ ؤ ډېر

ارزښتناک څرک راکوي. ګوندي زموږ محققين به د دغو څرکونو په پلټنه او څېړنه کښي د قدر وړ پاى موندني ولرلاى سي، چي وروسته به ئې يوه څرګندوءنه هم در وړاندي سي، چي په دوهمي ښايېدني پوري اړه لري. د ښادروان پوهاند عبدالشکور رشاد (لودي پښتانه) ئې يوه ستره نخښه ده.

(۸) و پټي خزانې ته له ملي او مذهبي نوني څخه کتنه:

د حاجي ميرويس نيکه تر مشرتابه لاندي د دې سيمي د پښتنو پاڅون يو ملي او مذهبي خوځښت ؤ، چي د اشغالګرانو تر ظلم او ستم لاندي ئې جوړښت او خپرښت موندلئ ؤ. دوى د ستانه خلکو اقتصادي منابع، کورونه، مځکي او باغونه په زور سره ځني قبضه کول چي و دوى ته ئې د محرک، تحقق وربخښونکئ ئې د دوى مذهب ؤ. دا مذهب دئ چي و اشغال، غصب او استبداد ته روايت ورکوي. دوى نوروز هم د مذهب برخه ګرځولې او آن شاه مسعود ئې لا د حضرت علي ﷺ ورور بللئ ؤ.

(۹) و پټي خزانې ته له قبيلوي نوني څخه کتنه:

په دغه کتاب کښي که به د ټولو قبيلو ښکارندوينه سوې نه وي، بيا هم نسبتاً د ډېرو دا سوې ده. په پټه خزانه کښي محمد قبايليت پاللى نه دئ، لکه تر دء وروسته چي عبدالغفار دغه کار په هوتکنامه کښي کړئ دئ، چي د سيمي د پښتنو پاڅون ئې يوازي په هوتکو پوري تړلئ دئ. البته د حاجي ميرويس نيکه له برکته څخه ئې مشرتوب په هوتکو پوري اړه لرله، چي و پښتنو ته ئې آزادي ور واخسته، او د هوتکو شاهي ئې جوړه کړه. خو په پاڅون کښي د سيمي ډېرى قبايل ورسره ول که به ټول نه ول.

په هغه پرېکړنده حساسه مرحله کښي چي اوو سوو جنګياليانو د شهنواز ګرګين چاره ورکوله، رېدي ګل ئې دغه پسې سرغنه ياد کړي دي، چي د حاجي ميرويس ملاتړ ئې کړئ ؤ: سيدال ناصر، بابوجان بابى، بادر خان (بادرزى؟) مياجي، يوسف هوتک، عزيز نورزى، نورو بړېڅى، نصرو الکوزى، او يونس کاکړ.

دا چي حاجي ميرويس د ښار د شاؤخوا، د مانجې، جلدک، ارغسان، پښين، ښوراوک او نورو ځايو پښتانه پر ځان باندي ورغونډول، دوى ئې سره متحد کول، نو دء به لا بيا هم قبيلوي ذهنيت لارء؟ يئه! دء د پښتنو يووالئ غوښتئ، او په خپل همت، فراست، درائت، او تر محيطي ظالمانه شرايطو لاندي ئې د ډېرو قبايلو دغه اتحاد حاصل کړاى سواى. نو محمد هم په پټه خزانه کښي د ميرويس نيکه دغه د عمومي ملي اتحاد فهم او ذهنيت پاللئ دئ. له هغي لومړنى ورځي څخه چي ځوان ميرويس د پښتنو د آزادى په نيامت خپل ګام اخستئ دئ، د قوم يووالئ به ئې هرومرو نصب الذهن ؤ. دى به خود پوهېدئ چي سوبه او برياليتوب په يووالي کښي دي، نه په تفرقه کښي. دغه ذهنيت به دء نه يوازي و خپل کهول ته ور تزريق کړئ ؤ، بل لا و خپل خېل، قبيلې، قوم او ټبر ته هم. نو په پټه خزانه کښي د محمد ذهنيت په اصالت کښي د ميرويس نيکه د پاليسى ښکارندوينه کوي. په بل عبارت سره پټه خزانه د حاجي ميرويس نيکه د ذهنيت او پاليسى ښکارندويه سمبول ده. دا څکه چي په دغه زمانه کښي دى د دغه ذهنيت مخکښ او اساس ايښوونکئ ؤ. که به څه هم دغه ذهنيت له حالاتو او شرايطو څخه ور پيدا سوئ ؤ، خو دء په ډېرو هلو ځغلو سره په پوهي او فراست سره تحقق او خپرښت ورکړاى سواى. حاجي ميرويس هم نظري يا عقلي جوړښت ورکړ او هم ئې د عمل جامه ور واغوسته. د دء تر مشرتابه لاندي اتحاد، يووالي، او اتفاق د پښتني قبايلو تر منځ

تأسیس او ټینګ سول.

نو پټه خزانه د یوې قبیلې یا یوه قوم پټه خزانه نه ده. دا د ټول پښتانه ملت پټه خزانه ده، هم د خلجیانو او هم د ابدالیانو او هم د نورو.

حاجي میرویس نیکه پښتانه قبایل په ویناوو سره په دلایلو او شواهدو سره، په احکامو او فتواوو سره متحد کړل.

خو لوی احمدشاه بابا د خپل وخت قبیلوي مشران په سوغاتو سره، د روحانیونو او ملنګانو په مرکوسره، او بالاخره د دوی قبایل په زور سره د ځان متحد کړل – دوی ئې یوزړه او یو لاس کړل. دا ځکه چې ځوان احمدشاه هم هغسي د میرویس نیکه غوندي پوهېدئ چې سوبه او بریالیتوب په یووالي او اتحاد سره تر لاسه کېدای سي، او بېله دې څخه به د شیطان تفرقه وي او دغه مانا ځله وېشنه، ځان ځاني، او ذلت.

موږ د سلطان احمدشاه بابا د یووالي او اتحاد ذهنیت او پالیسي د دې په ودان کړي ښار کښې لیدلای سو. دې د پښتیانا له بېلابېلو سیمو څخه پښتانه خېلونه او قبایل راوستل او په خپل نوي ودان کړي ښار کښې ئې داسي ستانه کړل چې کوڅې او د ښار د کلا برجونه ئې لا د دوی په نومونو سره ونومول سول.

دغه د کندهار ښار د سلطان احمدشاه بابا د ذهنیت او پالیسي سیمبول دئ. دغه ښار د پښتني اقوامو او قبایلو تر منځ د اتفاق او اتحاد ښکارندوینه کوي. دوی له دغه ښاره څخه د خپلو او پرء دو پر ضد باڼدي په یووالي سره درېدلي دي او جنګېدلي دي.

لکه څنګه چې د آزادۍ مخکښ حاجي میرویس نیکه او د لوی افغانستان مؤسس سلطان احمدشاه بابا د پښتني قبایلو اتحاد له بېلابېلو لارو څخه تر لاسه کړای سوای، خوشحال خټک په ختیځه پښتیانا کښې، د مغولو تر واکمنۍ لاندي، دغه کار نه وکړای سوای. دې پړه د دوی پر قبایلیت او جهالت باڼدي وراړوله چې د مغولو تر باداري لاندي په خپلو منځو کښې یو د بل سرونه ځله وهي، چې دی ئې داسي ښکارندوینه کوي:

پښتانه واړه ناپوه دي یو پر بل کاندي غورزی

چي یو سر کاندي راپورته بل ئې ووهي مغزی

د دغه جهالت له بدمرغۍ څخه پښتانه قبایل همېشه په خپلو منځو کښې سره اخته ول. آن دا چې د آزادۍ بخښونکي میرویس نیکه او د سلطان احمدشاه بابا چې د لوی افغانستان مؤسس ؤ، له ذهني او عملي درسونو څخه مو هیڅ زده کړه نه وکړه، چې عامل ئې زموږ جهالت دئ. موږ وروستنیانو د خپلو دغو دوو لویو تاریخي شخصیتونو د فکر او عمل پالنه کړې نه ده – ځکه نو موږ د دوی نااهله او بې کفایته پورګنئ یو. چې لا تر اوسه په جهان کښې جاهل ترین ملت او تر شاپاته ترین خلک پېژندل کېږو. نور لیري څه و خپلو نژدو ګاونډو ته هم نه ګورو – فهم ئې نه لرو.

موږ د میرویس نیکه او احمدشاه بابا د یووالي له لاري څخه انحراف کړئ دئ. نو ځکه هم موږ منحرفین یو. موږ د پخوا په شاني قبایلیت پالو، نه دوی غوندي وحدت، موږ تر قبیلوي نومونو او شعارونو لاندي تفرقه او بېلوالئ پالو، نه دوی غوندي یووالئ. موږ د خپلو نومیالیو نیکونو سمه سیده رشتیانې لار پرې ایښې ده، او پر کږې لاري باڼدي درومو. نو ځکه هم د تمدن و منزل ته رسېدای نه سو ځو لار مو الیشه کړې نه وي.

موږ که هر کله د میرویس او احمدشاه غوندي له دغه زاړه قبیلوي ذهنیته څخه ځان وژغورلای سوای نو به د یووالي و تاریخي پړاو ته چې تمدن دئ، ور رسېدلي یو او د مترقي دنیا سیالان سوي به یو. دا چې تر اوسه پوري داسي پېښه سوې نه ده، دا زموږ د دواړو نیکونو وبال دئ، دا چې لا وګړي او جاهلان یو، دا چې رنګ مو نه ښه کېږي، دا چې په غاړو

کښې سره لوېدلي يو، دا د ميرويس نيکه او احمدشاه بابا د لارې د پرېښوونې آزار دئ، دا چې موږ د دوی له تنګ لارې څخه اووښتي يو، او پر ځای ئې د ناپوهۍ او تفرقې پر لارې باندې روان يو، دا مو د دوی د برياوو فهم لرلئ نه دئ او زده کړه مو ځنې کړې نه ده.

د ناپوهۍ پايلامه تفرقه ده، د تفرقې پايلامه جنګ، وژنګ، او سرغوځې دئ. دښمن په آسانۍ سره کولای سي چې د جاهل وګړي قوم د قبايلو تر منځ کينه پيدا کړي، او واړه قبايل يو په بل سره له پښو واچوي او داسي ئې هم کړي دي.

نو بالآخره قبايليت پالنه څه مانا لري؟

قبايليت پالنه مانا د خپل تاريخ فهم نه لرل دي، يا په خپل تاريخ سره نه پوهېدل دي. جهالت هم دغسي وي. دا ئې ثبوت دئ. په قبايليت کې عناد، کينه او حسادت د جهالت يوه پايلامه ده، دء خوشحال ئې بيا هم ناپوهي داسي عامل بللئ دئ:

سر ئې هوري يو دمغار بل کندهار دئ
تر دا منځ همه ميشته واړه عبس دي
اوښ له باره سره کور ته ورغلئ
په هوس د اوښ د غاړې د جرس دي

هوښياران، د پوهې خاوندان، د اوښ بار غوړوي چې و دوی ته ئې څه سوغاتونه ور وړي دي؟ که ګوري چې اوښ په بوتکيانو يا بوتکيو سره بار دئ. نو ئې مشران د خپل کلي او وطن د آبادولو له پاره خپله ونډه ځنې غواړي څو د خپلو لوږو او زامنو، خپل او خلکو د ښېګڼو له پاره ئې پرېکړه او اخستنه ځنې کړې وي، ځان ئې د جهان له سيالانو سره په سم کړئ وي. وايي چې موقع په لاس راغلې ده څو خوشي، ژر او عبث مو له لاسه څخه وتلې نه وي. له بده مرغه چې جاهلان داسي نه کوي، بل لا ضد ئې کوي. دوی د اوښ د غاړې د زنګولې و شرنګهار ته ايشلي او اتڼونه کوي. عامل ئې دا دئ چې دوی خپل عقل په کار اچولای نه سي. ځکه چې د فهم دروازې ئې دړلي دي:

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٧١﴾
(البقره: ۱۷۱)

"دوی کاڼه دي، ګونګيان دي، او ړانده دي، نو ځکه هم دوی له عقله څخه کار اخيستلای نه سي".

دوی به لا کله له عقله څخه کار اخلي؟ دا هاله چې دوی د زده کړو او پوهني خاوندان سوي وي. بېله علميته او زده کړو څخه سوکالي پر دوی باندې د ط ټکی دئ. عاميانه متل دئ، چې وايي: "بې علمه سر کدو دئ". نو کدوان بايد په کال کښې د کدوګل مشاعره ولري، نه د نمرګل مشاعره. د نمرګل مشاعره بايد د مکتب او پوهنتون د زده کړيانو مشاعره وي.

يو بل وړانديز به هم وکم. هغه دا چې پر ۲۴ سلواغه ۱۰۸٦ ش باندې حاجي ميرويس نيکه و کندهار ښار ته فاتحانه ورننوتلئ او قدرت ته رسېدلی دئ او پر ۲۴ چنګاښ ۱۱۲۵ ش باندې ځوان لوی احمدشاه په کندهار کښې پر تخت کښېنستلئ دئ، د دغو دوو ورځو د وياړنې جشن بايد هر کال په دغه ښار کښې جوړ کړه سي. دغسي ويناوې لکه دا اوس چې موږ پورې لګيا يو، بايد په دغو ورځو کښې وړاندې کړل سي.

**اخيستځونه:**


۱. محمد هوتک، پټه خزانه (تذکرة الشعراء)، ۱۱۴۱ – ۱۱۴۲ هـ ق. د پوهاند حبيبي له حاشيو او تعليقاتو سره، دوهم چاپ ۱۳۳۹ هـ ش.
۲. محمد هوتک بن داود، پټه خزانه (تذکرة الشعراء)، د پوهاند عبدالحي حبيبي له حاشيو او تعليقاتو سره، ۱۳۵۴ هـ ش.


پاته په (۲۲) مخ کي

ځېړونکی شېرشاه رشاد

## د پښتې خزانې په منابع او ماخذو کې

# د داود هوټک برخه

ګوډ تېمور (۷۷۱ - ۸۰۷ مړ) د خپلې منهوسې واکمنۍ پر مهال د نورو لښکرکښيو د فراغت له پاره زموږ د هېواد په ځينو سيمو وېش ګډ کړ، د کندهار، کابل، بلخ سيمې يې د هند تر پولو پورې خپل زوی ميرزا غياث الدين جهانګير او لوېديزې سيمې يې تر خراسانه پورې خپل بل زوی ميرزا شاهرُخ (۸۰۷ - ۸۵۰ هـ. س) ته وسپارلې. جهانګير د ګوډ تېمور په ژوند ومړ او د ده تر ولکې لاندې سيمې د ده زوی ميرزا پير محمد ته ورسېدې. په ۸۰۷ هـ. س کال کله چې د ګوډ تېمور خوله پټه سوله، ميرزا پير محمد د پاچهۍ اعلان وکړ او کابل يې پايتخت وټاکه، خو دوه کاله وروسته په (۸۰۹ هـ. س) کال دی هم په تېر سو او د ده سيمې هم د شاهرُخ لاس ته ورغلې.

په (۸۲۰ هـ. س) کال د کندهار د دوو مشرانو د سيفل کندهاري د زوی او ملک محمد تر منځ شخړه پېښه سوه او د کندهار پښتانه له ګرمسېره څخه د اباسين تر غاړو پورې پورته سول، شاهرُخ د دوی د ځپلو له پاره له لوی لښکر سره مخ پر کندهار را وخوځېد.

په (۸٦۵ هـ. س) کال له کندهاره ترسيستان او کابله پورې سيمې د ګوډ تېمور کړوسي د ميرزا پير محمد زوی امير خليل ته ورکړه سوې. د ده د ظلمونو په اړه د "روضة الجنات في اوصاف المدينة الهرات" مؤلف معين الدين محمد اسفزاري په (۸۹۷ هـ. س) کال ليکي:

"... امير خليل له کندهاره څخه نيولې تر اسفزاره پورې او له زاوله څخه تر کابله پورې ټولې سيمې ويجاړې او د دې سيمو مشران او خانان يې تر تېغ تېر کړل...".

په (۸۸۴ هـ. س) کال سلطان حسين بايقرا (۸۷۳ - ۹۱۱ هـ. س) د غور او زينداور حکومت د مير حسين بصري زوی امير ذوالنون بېګ ته ورکړ. ده خپله واکمني تر کندهار او فراه پورې وغزوله او په (۹۱۱ هـ. س) کال د سلطان حسين بايقرا د مړيني سره سم يې خپل استقلال وموند. شال، مستونګ او سنده يې هم ونيول.

د تېموريانو د پاچهۍ لړۍ چې په هرات کې وشلېدله، په شمال کې د ازبک شيباني خان پام د هرات خواته ور واوښت او په (۹۱۳ هـ. س) کال يې پر هرات بريد وکړ، هغه يې ونيو، فراه او ګرمسېر يې هم خپل کړل.

په دغه کال بابر د کابل له لوري پر کندهار بريد وکړ، کندهار يې ونيوی او خپل ورور ناصر ميرزا ته يې وسپاره، خپله کابل ته ستون سو. شيباني خان چې خبر سو، له لوی لښکر سره مخ پر کندهار راوخوځېد. د امير ذوالنون زامن شاه بېګ

ارغون او مقیم ارغون یې مخې ته ورغلل او په ګډه یې پر کندهار برید وکړ، تر څو ورڅخو کلابندي. وروسته ناصر میرزا کابل ته وتښتېدی او کندهار شیباني خان ته په لاس ورغی. ده بیرته ارغونیانو ته وسپاره.

په (۹۱٦هـ. س) کال کله چې شیباني خان وواژه سو. دې خاوري ته د ایران سترګي سرې سوې او هرات د شاه اسماعیل صفوي په لاس کښېووت. په دې ترڅ کي بابر دوهمه پلا پر کندهار برید وکړ.

په (۹۴۱هـ.س) یا (۹۴۲هـ. س) کال د شاه اسماعیل زوی سام میرزا د کندهار نیولو ته ملا وتړله. کندهار یې شپږ یا اته میاشتي کلابند کړ خو کلکه ماته یې وخوړه او په خورا خړه ورځ یې د خراسان پر لور ترپلل.

په دې څه باندي دوو سوو کلونو کي افغانستان د فتنه پارونکي مثلث په منځ کي پروت و، د شمال له خوا د ماورالنهر ازبکو داړه مارو حکمرانانو پخپل وحشت کي زیاتوب راوستی و، په ختیځ کي د ګورګاني هند ظالمو واکمنانو خپلي نجسي منګولي ښخي کړي وې او د لوېدیز له خوا متعصبو او مفتنو ایراني واکمنانو خپل پراختیا غوښتکی استعماري سیاست پر مخ بېوی.

د افغانستان جغرافیایي – سیاسي موقعیت د ډېرو ګاونډیو په سترګو کي اغزی و، په خاصه توګه د هېواد جنوب – لوېدیزي سیمي یا لوی کندهار د دوو لویو پاچهیو (مغلولو او صفویو) تر منځ د شخړي مرکزي ټکی و. هر لوري به د خپلو سیاسي موخو او د دې اولس د ېېرولو او اېلولو له پاره له هیڅ ډول ناولو او کرغېړنو کړنو څخه مخ نه ګرځاوه.

اروانښاد غبار پخپل "افغانستان د ر مسیر تاریخ" نومي اثر کي د ایراني لوري د تعصب په اړه لیکي:

"... د هرات ایراني حاکم امیر خان د هراتي شاعر اوبهي (اګهي) هروي لاس او ژبه په دې خاطر پرې کړل، چې د ده یوه هجوه یې ویلې وه...".

د مغلو د ظلمونو په اړه پېر روښان لیکي:

"زه چې کندهار ته ولاړم، د بېرم خان سپاهیانو یوه ښځه په کوڅیو په ژرندي پوري تړلې وه، ژرنده چې به ګرځېده، دا به سم ورسره چورلېدله. هغه ظلمونه چې مي پر پښتنو ولیدل د هغو تریخوالی تر مرګه نه سم هېرولای".

په دغسي تورتم کي د سلطان حسین صفوي له خوا په (۱۱۱۴ هـ. س) کال یو متعصب ګرجی د "ګرګین" په نامه کندهار ته راولېږل سو، چې د دې اولس پر بخولو (مصیبتونو) باندي یو بل سرباری و، ده تر هر څه وړاندي د ابدالي پښتنو مشر دولت خان، زوی یې نظر محمد او یو مریی یې د فقیر په نامه شهیدان کړل.

سرجان مېلکم په تاریخ ایران کي لیکي:

"... ګرګین به خپلو لښکرو ته امر کاوه، چې د دې سیمي د خدای ﷻ د مخلوق مالونه چور کړئ، ویني یې وبهوئ، ناموسونه یې بې پردې کړئ! د ده دا ګومان و، چې په داسي زور زیاتي به پښتانه خوار او ذلیل سي او ده ته به غاړه کره کړي".

خو پر دې سرلوړي خاوري باندي له ټولو بهېدلو وینو څخه د آزادۍ او خپلواکۍ داسي نیالګي راوغوړېدل، چې نه یوازي یې تېري کوونکو ته غاړه کره نه کړله، بلکي د دوی له شیطاني فکرونو څخه ډک سرونه یې په خاورو ورومندل. د هیواد ستر نومیالی او ملي مشر میرویس نیکه زموږ د تاریخ یو له هغو د ګوتو په شمار سرلوړو

شخصیتونو څخه دئ، چي پخپله ذکا، تدبُر، درایت او هوښیارو خبرو یې خپل اولس او هېواد د ظالمانو له ظلمه څخه و ژغوری.

علامه سید جمال الدین افغان په "تتمة البیان في تاریخ الافغان" کي لیکي:

"... د فضیلت ښښتنان هغه څوک دي، چي د خپل اولس د خپلواکۍ له پاره ځانونه هر اور او اوبو ته اچوي او په بدله کي یې د اولس بې له خیره بله هیله نه لري. داسي نه دي لکه ځیني بې همته او ټیټ خلک، چي د شهوت په سین کي غوټه وي، خپل هیواد او اولس په څو خوشمړو پر پردو خرڅوي".

د دې خونړي مثلث دا ناروا سیالیو دوه سوه څو کاله دوام درلود، دې سیالیو نه یوازي ډېري ککرۍ ورژولې او ډېري ځوانۍ یې نیمه خوا کړې، بلکي د هیواد ډېر اقتصادي او فرهنګي مرکزونه یې هم له منځه یووړل. یقین ته نژدې ګومان دا هم دئ، چي په دې کلونو کي به د پښتو ژبې ډېري ادبي هستۍ په دې اور کي سوځلي وي.

له نېکه مرغه د دې پېر د وروستیو کلونو یوازنۍ مغتنمه تذکره، چي د پښتو ادب زرکلن تاریخ تر موږه پوري رارسوي او تر پنځوسو زیاتو شاعرانو او لیکوالو ژوند او ویناوي پکښي خوندي دي، له دغو افاتو څخه خوندي پاته سوې ده.

دا تذکره د محمد هوتک "پټه خزانه" ده، چي د ده د دېرشو کلونو پرله پسې پلټنو تومنه ده، ده د دې تذکرې په راټولولو کي له درو ډولو ماخذو څخه ګټه اخیستې ده:

لومړی: لاس ته ورغلي کتابونه.

دوهم : مستقیم روایتونه او پېژندګلوي.

درېیم : شفاهي روایتونه.

د پټې خزانې په دوهمه خزانه (برخه) کي محمد هوتک خپل همزولي شاعران د خپلي پېژندګلوۍ له لاري موږ ته را پېژني او ځای - ځای د ځینو همزولو روایتونه د نورو په اړه د سند په توګه راوړي، خو په لومړۍ او درېیمه خزانه کي د متقدمینو په اړه چي کوم روایتونه راوړل سوي دي، د دغو ټولو روایتونو په منځ کي د ده د پلار داود هوتک برخه تر بل هر چا ډېره او درنه ده. د ده نهه موثق روایتونه موږ په پټه خزانه کي وینو.

## لومړی روایت :

د پټې خزانې د لومړۍ خزانې (برخي) تر ټولو لومړی شاعر، چي موږ ته را پېژندل کېږي بابا هوتک دئ، د ده د کورنۍ، ژوند، شاعرۍ او د مغولو سره په جنګ او شخړه کي د غښتلتیا او مېړانې په اړه، چي څه راوړل سوي دي، د داود هوتک د روایت له مخي دي. په دې روایت کي د بابا هوتک هغه سندره هم راغلې ده، چي د مغولو سره د جنګ پر مهال ویلې سوې او ځوانان یې جګړې ته تودول.

> پر سور غر بل راته نن اور دئ
> وګړیه جـوړ راته پېغـور دئ
>
> پر کلي، کور باندي مغول راغی
> هم پر غزني، هم پر کابل راغی

(پټه خزانه – ۹ مخ)

د دې روایت په اړه اروانښاد سر محقق دوست شینواری داسي انګیري، چي که څه هم مؤلف (محمد هوتک) وایي دا سندره ماته خپل پلار داسي ویلې ده، خو غالباً ده ته په لیکلې بڼه رسېدلې ده، ځکه د پټې خزانې په متن کي د "مغول" نوم هر ځای په واو سره راوړي، خو د بابا هوتک په سندره کي اته ځایه "مغل" بې واوه لیکي، دا کومه تصادفي خبره نه ده.

اروانښاد دوست شینواری دا هم زیاتوي، هر متن که پر هره لار ده (محمد هوتک) ته رسېدلی دئ، هغه یې د خپل ذوق سره سم نه دئ اړولی او دغه ستر امانتگر حتی په لیک دود کي هم دغه امانت ساتنه مراعات کړې ده.

**دوهم روایت:**

په مرغه کي د خرښبون مړینه او د ده د اولادې خپرېدا د ارغسان، پښین، ږوب او کوړک غرو ته، د شیخ متي د ژوند، کورنۍ، زُهد، تقوا، علمیت، ارشاد او شاعرۍ په اړه، چي څه پټې خزانې راوړي دي، هغه د داود هوتک په حواله دي.

د شیخ متي ﷫ اوځار مناجات، چي په پټه خزانه کي راوړل سوی دئ، محمد هوتک یې د خپل پلار له خولې اورېدلی بولي.

پهلویو غرو، هم په دښتو کي
پهلوی سهار، پهنیمو شپو کي
پهغاړه ږغ او په شپېلکو کي
یا د ویـرژلـو پهشپېلوکـي
ټول ستا د یاد، ناري سوري دي
دا ستـا د مینې نـښـداري دي

(پټه خزانه – ۲۲ مخ)

**درېیم روایت:**

داود هوتک و ښوراوک ته پخپل سفر کي د شیخ بستان بړېڅ او د ده د کورنۍ په اړه ډېر معلومات د ښوراوک له سپین ږیرو څخه اورېدلي، دا چي د شیخ بستان پلار محمد اکرم بړېڅ یو عابد او پرهېزگار سړی و، له ښوراوک څخه ولاړ او د هلمند پر غاړه یې واړول، زوی یې له ده څخه فیض وموند او په ځوانی کي هندوستان ته ولاړ. د داود هوتک اورېدلي خبري دي.

د دې تر څنګ داود هوتک د شیخ بستان بړېڅ "بستان الاولیا" نومی اثر په ښوراوک کي د حسن خان بړېڅ کره لیدلی او د ځینو پښتنو اولیاوو حالونه، کرامتونه، عادات او شعري بولگي یې ځني را اخیستي دي.

د شیخ بستان بړېڅ یوازنی بدله، چي پټې خزانې راوړې ده، محمد هوتک له خپل پلار داود هوتک څخه اورېدلې بولي.

اوښکي مي څاڅي پر گرېوان یو وار نظر که پر ما
راسه گذر که پر ما

(پټه خزانه – ٦٦ مخ)

**څلرم روایت:**

له پورتني اثر "بستان الاولیا" څخه د داود هوتک له را اخیسته سویو یاداښتو څخه یو هم د شیخ تیمن کاکړ په اړه دئ، چي دی د شیخ کاکړ زوی، زاهد او ستانه سړی و، له ږوبه څخه غور ته ولاړ، په کجران کي و اوسېد او ومړ. د ده یو شعر محمد هوتک د خپل پلار په حواله په پټه خزانه کي راوړی دئ.

گهیځ ږنا د لمر خپره سوه
زما پر کـور د ویر ناره سوه
د بېلتون ورځ توره تیاره سوه
ږغ سو ناڅاپه چي بېلتون راغی

(پټه خزانه – ٦٢ مخ)

**پنځم روایت:**

په کندهار کي د ایراني صفوي حاکم گرگین له ظلم او ستم څخه د خلکو تر پزي پوري رسېدل، له دې حالته څخه د وتلو له پاره د میرویس خان نیکه سره مصلحت، د کوکران او مانجې جرگې، د رحمان بابا دېوان پر نیک پال باندي کتل، فتنه په بیدو (پټه خوله) مړه کول، د

میرویس نیکه په مشرۍ د خلکو پاڅون، هغه څه دي، چې د پټې خزانې مؤلف یې د داود هوتک له خولې راوړي. (پټه خزانه - ۹۶-۹۸ مخونه)

**شپږم روایت :**

د میرویس نیکه د مور نازو انا په اړه، چې مېلمه پاله، غریب نوازه، مېړه مخې، جنګیالۍ، عابده او صالحه ښځه وه، له درنې پښتنې کورنۍ څخه وه، په کوچنیوالي یې له پښتنو مېرمنو او سپین ږیرو علماوو څخه لوست وکړ، د دوو زرو بیتونو شا و خوا دېوان یې لاره، ټول هغه مطالب دي، چې پټې خزانې د داود هوتک له خولې راوړي دي.

د نازو انا هغه اوځاره رباعي، چې ډېر پښتانه یې پېژني او پټې خزانې تر موږ پورې رارسولې ده، د داود هوتک د روایت له مخې خوندي سوې ده.

سـهارګه وه، د نرګیس لېمه لانده
څاڅکي - څاڅکي یې له سترګو څڅېده

ما وېل څه دي، کښلې ګله ولي ژاړې ؟
ده وېل ژوند مې دی، یوه خوله خندېده
(پټه خزانه - ۱۸۰ مخ)

**اووم روایت :**

داود هوتک بنو ته د سفر پر مهال، چې کوم یاداښتونه راټول کړي دي، یو له هغو څخه د خوشال خان خټک د لور بي بي حلیمې په اړه دئ، چې دا عابده، عارفه، فاضله او د قران عظیم الشان حافظه وه، د خپل ورور قادر خان خټک په کور کې یې نورو ښځو ته لوست هم وایه او په پښتو یې شعرونه هم ویل. یوه بدله یې، چې پټې خزانې راوړې ده، هغه هم د داود هوتک له روایت څخه ده.

چې یې کړمه ستا په مینه سرفرازه
ثنا خوانه په څو رنګه د رحمان سوم
(پټه خزانه - ۱۸۰ مخ)

**اتم روایت :**

داود هوتک بنو ته په خپل سفر کې د شېخ امام الدین خلیل غوریاخېل "اولیاي افغان" او د بي بي نېکبختې "ارشاد الفقراء" چې په (۹۶۹ هـ. س) کال کښل سوی دئ، پخپله لېدلي او د بي بي نېکبختې د ژوند، کورنۍ، شاعرۍ او زوی یې میا قاسم افغان په اړه معلومات پټې خزانې ته د ده پر لاس لاره کړې او خوندي سوي دي.

محمد هوتک کاږي : د دې ځینې شعرونه زما د پلار په یاد وه، چې ما دلته څني رانقل کړل.

په زړه ښاد شې اې مومنه!
په ظاهر په باطن سـپینه
×××
د خدای ﷻ حق ته غاړه کښېږده
نـوري، نـوري وینا پرېـږده
(پټه خزانه - ۱۸۲ - ۱۸۴ مخونه)

**نهم روایت :**

په (۱۱۰۲ هـ. س) کال داود هوتک پنجوایي ته تللی و او هلته یې د ملا دین محمد کاکړ په کهاله کې د ده د لور زرغونې کاکړې په خپل لاس کښلی "بوستان د پښتو" لیدلی و، چې د شېخ مصلح الدین سعدي بوستان دئ او په (۹۰۳ هـ. س) کال پښتو نظم ته اړول سوی دئ.

سر بېره پر دې اثر زرغونې کاکړې نور شعرونه او غزلې هم ویلې دي، چې یو منظوم حکایت یې د داود هوتک پر لاس پټې خزانې راوړی دئ.

اورېدلې مې کیـسـه ده
چې له شاتو هم خوږه ده
(پټه خزانه، ۱۹۲ - ۱۹۴ مخونه)

د پښتو ژبې او ادب د اثارو د پلټنې په لړ کې داود هوتک د کندهار په جنوب ختیځ کې پروت غره کوړک ته هم تللی دئ

او د دې غره په لمنه، د توبا په سيمه کې يې د دوست محمد کاکړ (غرغښت نامه) هم موندلې ده، چې له اوس څخه پنځه سوه کاله وړاندې په (۹۲۹ هـ.س) کال نظم سوې ده.

د محمد هوتک په خبره، د دوی په کهاله کې به پر دغه غرغښت نامه باندې کوچنيانو او زلميو سبق لوست.

دغه غرغښت نامه سربېره پر دې چې پخپله هم د پښتو ادب يو منظوم اثر دئ، خو تر څنګ يې موږ ته د پښتو منظوم ادب دوې نورې ورکې خزانې، يوه د خپل پلار بابړ خان (تذکره غرغښت) او بله د زرغون خان نورزي ساقي نامه هم راپېژني.

د دغې غرغښت نامې پر لاس خپله د ناظم، د هغه د پلار بابړ خان او د زرغون خان نورزي د ژوند، شاعرۍ، سفرونو او مېړانې په اړه معلوماتو هم پټې خزانې ته لاره کړې ده.

په پټه خزانه کې د داود هوتک پورتني روايتونه ښيي، چې ده ډېر عمر له کندهاره دباندې د کسي په غره، بنو، ړوب، پېښور او نورو سيمو کې تېر کړی دئ، ډېر متشبث او متجسس سړی و، د پښتو ژبې له منظوم او منثور ادب او د پښتنو له تاريخ سره يې ژوره مينه لرله، قوي حافظه يې وه، د ده راټول سوي ياداښتونه د پښتو ادب د تاريخ په برخه کې يو په زړه پوري بحث دئ.


اخيستځی:

۱. پټه خزانه - محمد هوتک، تعليقات او لمنليکونه - علامه حبيبي - دوهم چاپ - ۱۳۳۹ل - کابل.
۲. هوتکيان - بېنوا.
۳. د پښتو تاريخ (لومړی ټوک) - قاضي عطاءالله، ۱۳۵۶ل کال - کابل.
۴. د کندهار ياداښتونه - علامه رشاد - ۱۳۸۵ل - کندهار.
۵. د افغانستان پر معاصر تاريخ يوه لنډه کتنه - عطايي، ۱۳۸۳ل کال - کابل.
۶. د افغانستان لنډ تاريخ - علامه حبيبي، ۱۳۴۶ل کال - کابل
۷. تتمة البيان فی تاريخ الافغان - علامه سيدجمالالدين افغان - پښتو ژباړه - ر - حبيبي - ۱۳۸۷ل.
۸. ميرويس نيکه - بېنوا - ۱۳۲۵ ل - کابل.




### د ۱٦ مخ پاته


۳. د خوشحال کليات.
۴. محمود الحسيني الجامي، تاريخ احمدشاهي.

پر پټه خزانه باندې د علامه حبيبي مقالې:

۱. "پټه خزانه: د پښتو ادب خورا قيمتي خزانه، چې د ادب تاريخ ئې (۱۲۰۰) کاله پخوا راښئي"، کابل مجله، ۱۳۲۲ کال، ۵ ګڼه، ۱ - ۹ مخونه، د علامه پوهاند حبيبي مقالې، لومړی برخه، ۱۳۸۲: ۱٦٦ - ۱۸۳، غونډونکئ: مطيع الله روهيال.
۲. "د پټې خزانې نثر ته يوه کتنه"، کابل مجله، ۱۳۲۲ کال، ۷ ګڼه، ۱ - ۴ مخونه، م. روهيال، همغه: ۲۵۲ - ۲٦۲.
۳. "پټه خزانه چا، چيرې او څنګه پيدا کړه؟"، تاريخي پلټنې، د مقالو مجموعه، ۱۳۵۷ کال، ۱ - ۴ مخونه، م. روهيال، همغه: ۳۰۲ - ۳۰۴.
۴. "د پټې خزانې په لاس کښلې نسخه کښې د ځينو کلونو تصحيح"، د محمد هوتک ياد، ۱۳٦۰ کال: ۱ - ۵، شل مقالې، ټولوونکی: م. روهيال، پنځمه برخه ۱۳۸۳: ۹٦ - ۱۰۰.
۵. "د امير کروړ په حماسه کې د يرغال کلمه"، کابل مجله ۱۳٦۱ (۴): ۵۰ - ۵۲، شل مقالې، م. روهيال، ۱۳۸۳ (٦): ۱۳۵ - ۱۳۷.
٦. "د پټې خزانې د څلرم چاپ سريزه"، شل مقالې، ټولوونکی: مطيع الله روهيال، ۱۳۸٦(۹): ۳۴ - ۷۱.
۷. "پټه خزانه"، اخستيځ: شل مقالې، ټولوونکی: م. روهيال، ۱۳۸٦ (۱۳): ۱۳ - ۴٦.

بایزید اڅک/کابل پوهنتون




## په پټه خزانه کي

# د محمد هوتک د نثر ګرامري ځانګړتیاوي

## د اوسنۍ پښتو په پرتله

**د سر خبري:**

پټه خزانه خو ربښتیا هم یوه لویه علمي خزانه ده. د پخوانو شاعرانو او عالمانو د ژوندلیک خزانه، د تاریخي پېښو خزانه، د تاریخي آثارو خزانه، د جغرافیایي اعلامو خزانه، د اشعارو خزانه او بالاخره د هغه وخت او تر هغه پخوا زمانې د پوهانو او شاعرانو د افکارو خزانه ده.

پټه خزانه د هغه وخت د یوه معیاري پښتو روان نثر خزانه ده. له دغي خزانې څخه زه غواړم، چي یوازي د پیاوړي پښتو نثر لیکونکي او تذکره لیکونکي محمد هوتک د نثر ګرامري ځانګړتیاوي له اوسنۍ پښتو سره پرتله کړم.

ژبپوهان وایي چي د ژبي تاریخي تحولات د هغې له متونو څخه معلومېږي، چي له پخوانیو زمانو څخه راپاته وي. موږ اوس وینو چي په پټه خزانه کي د محمد هوتک نثر د ګرامري پلوه له اوسنۍ پښتو سره څونه توپیر لري. دا کتاب خو په ۱۱۴۱ - ۱۱۴۲ هجري قمري کلونو کي یعني لس یوولس کاله کم درې پېړۍ پخوا لیکل سوی دئ، چي د ژبي په تحول کي بېخي لږ وخت دئ. کتاب داسي پیلېږي:

"حمد و ثنا ده هغه خدای ته چي انسان ئې په ژبه او بیان لوړ کا او تمیز ئې ورکا له نورو حیواناتو په نطق او وینا سره او خپل کلام پاک ئې نازل کا په افصح بیان سره چي هغه معجز او ابلغ دی له کلامه د ټولو بلغا او فصحا".

په پای کي بیا وایي:

خاتمه د کتاب

"په بیان د حال د کاتب الحروف حقیر فقیر محمد هوتک مؤلف د دې کتاب هسي وایي محمد زوی د داود خان زوی د قادر خان په قوم هوتک چي زموږ د کهول اصل ځای مرغه وه، چي زما نیکه قادرخان له هغه ځایه راغی سیوري ته او هلته واوسېدی. پس له څو مدته په تقاضا د نصیب او قسمت راغی او د قندهار په خوا کي په کلي د کوکران استوګنه کوله او پېشه ئې و زراعت".

د دې څو کرښو او دغه راز په کتاب کي د نور متن د ځینو ټکو ګرامري ځانګړتیاوي په لاندي ډول دي:

(۱) مضاف تر مضاف الیه دمخه راوړل، لکه: "مؤلف د دې کتاب، محمد زوی د داود خان زوی د قادر خان" چي په

اوسنی پښتو په کي داسي ویل کېږي: د دې کتاب مؤلف محمد د داود خان زوی، د قادر خان زوی، البته دا ډول ترکیبونه ډېر دي، لکه : له تاړاکه د دښمنانو، کاتب د دې کتاب، زړونه زموږ. خو داسي ځایونه هم سته چي د اوس په شان مضاف دمخه او مضاف الیه وروسته راوړي، لکه: "د شاه حسین ورور لښکر وکاوه او اصفهان ته يې د یرغل عزیمت وکا".

(۲) د کول او کړل د کومکي فعل خاص استعمال د کا، وکا، کاندم په بڼو:

کا په تېره زمانه او ناتېره زمانه کي د دریم شخص لپاره او کاندم د لومړي شخص لپاره راوړل سوي دي، لکه: "هغه خدای چي انسان ئې په ژبه او بیان لوړ کا او تمیز ئې ورکا له نورو حیواناتو په نطق او بیان سره"

بل ځای وايي:

"زه ئې وغوښتم دربار ته ما ته ئې تشویق وکا او الطاف ئې ښکاره کا، په اهنګران کي ئې محصور کا، نقل کا، په دوران د بابر پادشاه ئې ژوند کا، دا زوی ښه تربیت که، چي لوی سي لوی کارونه به وکا او په زیارت د بیت الله به ځان مشرف کا، دین به روښانه کا، ما غوښته چي د پښتنو شاعرانو تذکره وکاږم او د دوی احوال سره راټول کاندم، ما ته ئې تشویق وکا، چي دا خپله اراده پوره کاندم، مګر زمانې ما ته فراغ نه راکا، چي لوی سو نو ئې کا د خدای عبادت...".

چي اوس يې مطلق ماضي شکل په وکی، وکړ او استمراري شکل يې د کاوه او د حال زمانې بڼه يې کوي راځي.

نور مثالونه يې دا دي:

"هغه وقت چي د ده استاد ابن خلاد په سترګو ړوند سو نو ده به ئې خدمت کا. او له مضامین شېرین ئې کام شېرین کا (۱۸٦ مخ)، له شاعرانو سره شاعري کا او پخپله هم اشعار انشاء کا، او که د خپل پیر دستګیر پر مخ راسي ژړا کا او هسي وینا کا (۱۵۴ مخ)، په اتهغر سکونت وکا".

(۳) د (په ... کي) سربل او استربل د ظرفي حالت: زیاتره يې یوازي (په) راوړی دئ، بېله (کي) څخه، لکه: "په هند او پښتونخوا مشهور سو، په شپو او ورځو په دښتو او غرو ګرځېده". خو ځیني ځایونه بیا (کي) هم ورسره راوړي، لکه: "ملا حافظ چي د قندهار په کښته خوا کي اوسي (۱۵۸ مخ) او په اتهغر ئې سکونت وکا".

بل ځای بیا وايي:

"او زما پلار ئې نسخه لیدلې وه په بنو"، "او په هغه کلي چي کوکران نومېږي ښخ سو"، "زما پلار چي داود خان نومېږي په کال (۱۰۲۹) سنه هجري په دغه کوکران زېږېدلی و". "په کلي د کوکران استوګنه کوله او پېشه ئې وه زراعت"، "زما پلار په سنه (۱۱۳٦) وفات سو او په کوکران د خپل پلار سره ښخ سو"، "زرغون په هرات او خراسان شعر وکا"، "په ختکو خوشحال بېګ عالم او شاعر پیدا سو".

(۴) د مثنائي حالت (ablative) په سر کي کله کله (له) او کله بیا (د) راوړي:

"له ډېري زمانې دې لودي تېر سلطنت کا په هند کي" (۷٦ مخ).

"نصرالدین خان اندړ له غزني راغی".

بل ځای وايي: "د ده پلار د ښوراوکه راغی" خو د (له) سربل يې ډېر راوړی دئ، لکه: "له هغه ځایه (مرغه) راغی سیوري ته". "له خیبره تر کوهستانه" "او ډېر عمر له قندهاره تللی".

په مثنائي حالت کي د (نه) و ستربل يې هیڅ نه دئ راوړی، څخه يې ډېر لږ راوړی دئ، لکه: "ښالم خان هوتک له دې

شجرهٔ طیبه څخه دی".

(۵) کله کله له (سو یا شو) سره د مرکب فعل پر ځای ساده فعل راوړي او کومکي فعل نه استعمالوي:

"سلطان ملخي سور غره ته نژدې په جنګ کې ومړ = مړ سو"

بل ځای وایي: "د ازبکو لښکر ډېر ومړل" بیا وایي: "په دې جنګ کې د بابا هوتک ډېر خپلوان ومړل" (۸ مخ).

(٦) په ماضي کي د دریم شخص مفرد مذکر فعلي خاتمه چي اوس هم په پښتو کي مختلفې بڼې لري، د محمد هوتک په نثر کي ډېر ځایونه په ئ راځي او کله کله بیا صفر مورفیم اخلي، لکه : "ولید" (۸٦ مخ) او (ولیدئ) ښځي ډېر راغلی دئ (۸۸ مخ).

"چي محمود اصفهان ته ولاړ ملا پیرمحمد هم ئې هلته وغوښت".

په دغه پورته جمله کي "ملا پیرمحمد هم ئې هلته وغوښت" یو داسي نحوي ترتیب دئ. چي په اوسنی محاوره کي فصیح نه دئ باید ئې هم وي. (حبیبي صاحب).

(۷) (په) د هدفي dative حالت د ادات په توګه راوړي، لکه: "زرغون خان له هغه ځایه په عراق او خراسان سفر وکا".

داسي معلومېږي چي د فارسي تر تأثیر لاندي راغلی وي (په) د فارسي د (به) په مقابل کي دئ.

(۸) کله کله یې د ربط توري حذف کړي دي:

"کله له کلاته ملا باز راغی"، کله چي له کلاته ملا باز راغی (اوسنی شکل دئ).

(۹) فعل تر مفعول دمخه راوړل:

د جملې د مختلفو برخو نحوي ترتیب کله کله سوه اړوي، مثلاً د پښتو د جملو عادي ترتیب داسي دئ: فاعل مفعول فعل.

خو محمد هوتک علیه الرحمه داسي هم لیکلي دي، چي فعل یې تر مفعول دمخه راوړی دئ، لکه:

"ملا الله یار وکیښ کتاب چه تحفهٔ صالح ئې نوم دی".

(۱۰) غیر عادي جمع:

اوس په پښتو کي د خټک جمع هم خټک (د ټ په زور) وایو، خو محمد هوتک علیه الرحمه وایي: "پښتانه خټکان ولاړل او دی ئې له هغه بندیخانې راویوست" (۸۰ مخ).

بل ځای وایي:

"د خوشحال بېګ کلی اکوړه نومېږي او هلته خټکان پراته دي" (۸۰ مخ).

خو دغه لوی تذکره لیکونکي پښتون د هوتک جمع هوتکان نه جوړوي. په اوسنی پښتو کي د خټک جمع خټک ده او د هوتک جمع هوتک ده.

(۱۱) په بې خجه نرمه (ی) سره مختوم مذکر نومونه په مغیره حالت کي:

دغه ډله نومونه چي په مغیره حالت کي راسي، زیاتره یې د اصلي جمعي (ي) لوېږي او د جمع مغیره حالت (و) /o/ ورپوري تړل کېږي، لکه : کلی، وګړی، غښتلی چي جمع ئې کلو، وګړو، غښتلو راځي، خو د محمد هوتک په نثر کي د اصلي جمع (ي) او د مغیره حالت (و) دواړه راغلي دي، لکه: "په کلیو کي"، "توري له تېکیو وکاږئ" (۹۹ مخ).

"وګړیو، غښتلیو" په پکتیکا او غزني او وردګو کي ویل کېږي او وایي:

منګی په ولیو ماز دیګر ګودر ته ځینه

(۱۲) د دریم شخص جمع مذکر لپاره فعلي خاتمه زیاتره ( ) او کله ( ) راوړي،لکه:

"حاجي میرخان دوی له قندهاره

وياسته" "او پښتانه ئې د دوی له جوره آزاد کړل".

"بابا هوتک دا سندره لولوله او په غشيو ئې د مغولو ټټرونه څيرل". "بابا هوتک خپل قومونه راټول کړل. په دې جنګ کې مغول تالا سول"، "ټول ئې پينا کړل"، "او پښتنو ګڼدیو ډېر ووژل"، "ملکيار بابا د سيوري په لتو کښې ډېر خپلوان راټول کړل او هلته ئې کارېزونه وکښل او خپل زلمي ئې په کښتو کرنو وګمارل. مغولو چې په دغو ودانيو غوړن سول".

"ډېر سخت جنګونه وسول"، "او ځيني ولاړل مرغې او ړوب ته".

(۱۳) کله کله د مغيره حالت پر ځای اصلي بڼه راوړي، لکه: "ملکيار بابا پر دې پل تېر سو"، چې بايد په مغيره شکل راغلی وای: "پر دې پله تېر سو". بل ځای وايي: "چې زموږ د کهول اصل ځای مرغه ده" مغيره بڼه يې داسې ده: "زموږ د کهاله اصل ځای مرغه ده".

(۱۴) کښېنوست: اوس کښېناست ويل کېږي: "چې شيخ حميد وفات سو نو ئې پر ځای نصر کښېنوست".

(۱۵) "تې" د ته ئې مخفف شکل دئ، اوس هم استعمالېږي، حبيبي صاحب هم په حواشي کې راوړی دئ.

(۱٦) په خاص کړه = خصوصاً، حبيبي صاحب حاشيه ورباندې کښلې ده.

(۱۷) د سول/ شول/ کومکي فعل په س سره استعمالوي.

**نتيجه:**

د پټې خزانې هغه متن چې د محمد هوتک په لاس ليکل سوی دئ، تر ډېرې اندازې له اوسنۍ معياري پښتو سره سمون لري، خو يو څو ټکي دلته د يادونې وړ دي:

۱. د مضاف او مضاف اليه ترتيب زياتره د فارسي او عربي په شان دئ، په دې باره کې د اوسنۍ پښتو نثر د فارسي او عربي له اغېزې وتلی دئ.
۲. د کا، وکا او کاندم کومکي فعلونه چې د دريم شخص او لومړي شخص لپاره راوړل سوي دي اوس په شفاهي او محاوره يي ژبه کې د وردګو په لهجه کې ويل کېږي، په ليکنۍ معياري پښتو کې نه استعمالېږي.
۳. د ظرفي Location حالت سربل يا پرې پوزيشن او استربل يا پوست پوزيشن دواړه په معياري پښتو کې ليکل کېږي، د ځينو ختيځو لهجو ويونکي شايي (په) حذف کړي خو (کي) تل استعمالېږي.
۴. د د منشائي يا ابلتيف حالت (له) اوس هم معياري دئ او محمد هوتک هم زيات راوړی دئ. د (له) پر ځای د (د) استعمال يوازې د لوېديځې لهجې خاصيت دئ معياري نه دئ، ځکه چې (د) د اضافت د سربل په توګه راوړل کېږي. دا دوه بايد سره ګډ نه سي. (څخه) محمد هوتک لږ استعمال کړی، (نه) يې هيڅ نه دئ استعمال کړی، زما په نظر تر ټولو يې زور (a) سم دئ، لکه کابله، له سهاره تر ماښامه.
۵. د دريم شخص جمعي فعلي خاتمه اوس /e/ دئ محمد هوتک هم دغه شکل ډېر راوړی دئ / / يې کله کله کارولی دئ.

پای

عبدالمجید بابی

# د پښتو د روزني او پالني سرلوړی ټاټوبی نارنج ماڼۍ

## دلته د ادب ځلانده ستوري او د دې نومیالیو لاسته راوړني

**سریزه:**

د نارنج ماڼۍ د کندهار د زاړه ښار مرکزي کلا وه، چي د هوتکي واکمن شاه حسین هوتک د دربار او اوسېدو مېنه وه.

د داود خان هوتک زوی محمدهوتک په پټه خزانه کي لیکي:

"پادشاه عالم پناه په ارګ کي د قندهار هغه قصر چي نارنج باله سي، هلته په هفته یوه ورځ دربار کا په کتب خانه کي او په مجلس کې علماء جمع کېږي او شعراء او فضلاء ټولوي".

دغه زوړ ښار د کندهار د اوسني ښار په لوېدیځه څنډه کي د سرپوزې د غره ختیځي خوا ته پروت او د کندهار اوسېدونکي هغه ته زوړ ښار وایي، د همدغه ښار د ارګ یا نارنج ماڼۍ کنډوالې اوس هم تر سوونو کلونو وروسته په لوړ سر ولاړي دي، د نارنج ماڼۍ او د هغه سره څرمه ټوله ښاري جوړښتونونه او تأسیسات د افشار نادر د تاړاک تر مهاله لا په ځانګړي برم سره ولاړ وه، زیاتره برخي یې د نادري لښکرو په یوه کلنه کلابندي او دلته تر بېساري مقاومت وروسته وران او بیا دې ښار ته په ۱۱۵۰ ق = ۱۷۳۷ ع کال په نېغه توګه د دې تاړاک د رسېدو سره سم هغه په ظالمانه چلند سره عمداً له یوه مخي د خاورو سره خاوري سوه او بیا په را وروسته مهالونو کي دا سرلوړې او د تاریخي ویاړونو څخه ډکه مېنه خپلو او پردو پخپل وار سره وخت په وخت د لا ورانیو تر درشله ورسوله.

تر څو چي په دې نژدې وروستیو کي په پراخه کچه په سیمه کي د یوه او نیم داخلي افشارو له خوا د دې ښار د ټوله ختیځ دېوال د شپېته ګزه پلنوالي څخه تر نیمایي ډېر په ټراکټورونو هوار او په خاورو یې د دېوال سره څرمه کنده یا خندق ډک او د کوکنارو د کښت لپاره یې زموږ د سرسختانه درېدو سره سره ښه په نره د ځان ملکیت وګرځاوه.

د کندهار د زاړه ښار او دلته د نارنج د تاریخي ماڼۍ د ورانیو مسئولیت او د پړتیا پړی به د ورانوونکو په غاړو کي پرېږدو. رابه سو د دې ښار د ادبي ځلاوو پېر ته چي په څه ډول دلته د پښتو د پالني او روزني لپاره پښتون واکمن شاه حسین هوتک لېځي رالغښتي وې او په مینه مینه یې پښتانه لیکوال او شاعران په پرله پسې توګه هڅول څو د پښتو د شملې سیوری د کروړ تر ورانې مېني ورسوي، غواړم د ښه څرګندتیا لپاره په لاندي ډول خپله لیکنه وغځوم:

### الف - د نارنج ماڼۍ ادبي دربار:

په نارنج ماڼۍ کي ادبي دربار په اوونۍ کي یو وار جوړېدی، د پټې خزانې لیکوال محمود هوتک یې په اړه لیکي:

"پادشاه عالم پناه په ارګ کي د قندهار،

هغه قصر چې نارنج باله سې هلته په هفته یوه ورځ دربار کا په کتب خانه کې، او په مجلس کې علماء جمع کېږي او شعراء او فضلاء ټولوي".

د پورتنی لیکنې څخه څرگندېږي چې د دې ادبي غونډو ځای د نارنج تاریخي مانۍ وه، چې مخکې یې یادونه وسوه. دا غونډې چې د شاه حسین هوتک له لوري د دوی په کتابتون کې رابلل کېدې خپله دوی هم شتون پکښې درلود. په دې ورځ به د کندهار پوهان، ادیبان او شاعران پر یوه ټغر راټولېده، او په علمي او ادبي بحثونو او د شعرونو په لوستلو به یې کرۍ ورځ د پاچا د مهربانیو په سیوري کې تېروله.

پاچا به ادیبانو او شاعرانو ته سوغاتونه او جایزې هم وېشلې، او هغوی به یې تل نازول.

## ب - د نارنج د ادبي دربار برخوال:

د نارنج د ادبي دربار د گډون کوونکو په اړه پراخ او جامع څه په لاس کې نسته، یوازې او یوازې پټه خزانه او په دې خزانه کې د یو شمېر مخورو یادونه سوې ده او په اغلبه توگه به همدوی د دې ویاړمن دربار همېشني غړي وه، دا چې د دې دربار څخه د لږو ډېر اغېزمنو او یا د لیرې او نژدې سیمو څخه د ورته راغلو نا استوگن کسانو په اړه بشپړه څرگندوني نسته نو خدای ښه پوهېږي، چې هغوی به څوک او شمېر به یې څونده و؟

په هر صورت څه چې پټې خزانې را څرگند کړې دي، د هغوی څخه په لاندې ډول یادونه کوو:

### (۱) پښتون واکمن شاه حسین هوتک:

د شاه حسین هوتک د همدې ادبي دربار، هغه روڼ څراغ خپله همدی و، چې د غونډو مشرتوب د دوی پر غاړه و او په ادبي خبرو اترو کې لویه برخه د دوی وه. همدغه پښتون واکمن د ۱۱۱۴ هـ ق کال د لومړۍ خور پر ۲۳ مه د دې هیواد په یوه لرغوني سیمه د غلجیو د کلات په سیوري کې د خپل مېړني پلار میرویس خان نیکه پر مېنه زېږېدلی دئ. په ۱۱۳۵ هـ ق کال د خپل ورور شاه محمود هوتک له خوا د کندهار او شاوخوا سیمو دواکمن په توگه وټاکل سو او تر ۱۱۵۰ هـ ق کال پورې یې د غزني څخه تر سیستان او هرات پورې او همدارنگه په سهېل کې یې تر ږوب، گومل او دېره جاتو پورې د انصاف په لوړ نامه سره واک وچلاوه.

شاه حسین هوتک خپله شاعر او د شعر او شاعرۍ سره یې توده مینه درلوده. ملا یارمحمد هوتک د دوی استاد و او د هغه څخه یې فقه، تفسیر، منطق او بلاغت لوستي وه. د نارنج په مانۍ د دوی د نورو علمي او ادبي ویاړونو تر څنگ د ده کتابتون او د هغه په بډاینه او پراخېدنه کې هلې ځلې د غور او ستاینې وړ دي.

د دوی د ادبي لېوالتیا په رڼا کې وه، چې کاتبان او لیکوالان تر پېښوره ورسېده، څو د پښتو ژبې د نومیالي شاعر رحمان بابا د شعري دېوان څخه څو نسخې رانقل او کندهار ته یې راوړي، څو د یوې خوا د واکمن د کتابتون ښکلا او غنا وي او د بلې خوا د غوښتونکو او علاقه مندانو لپاره د ادبي تندې د ماتېدو غوره متاع وي.

دا چې د دې شاهي کتابتون به په بشپړه توگه څه درلوده او د هماغه مهال په گډون به یې د تېرو مهالونو د پوهانو او ادیبانو د ذهني او قلمي لاسته راوړنو خزانې څه وې په اړه یې معلومات ځکه پر نېست حساب دي چې نادري تاړاک دا هر څه د خپلو لمبو خوراک گرځولي دي.

د دغه علمدوسته شاعر او ادیب شاه حسین هوتک یوولس کلنه واکمني په ۱۱۵۰ کال کې د افشار نادر او د ده سره د کورنیو پلویانو له لاسه ړنگه او دغه پښتو روزونکی

واکمن یې په ناڅوانمردانه توګه مازندران ته تبعید کړ او بیا هلته تر دوو کالو وروسته په ۱۱۵۲ هـ ق کې د نادري قهر او خروش په پایله کې په زهرو ووژل سو.

د دغه پښتون واکمن د شعرونو دوې نمونې پاته دي، چې یوه یې په تذکرة الشعراء او پښتانه شعراء لومړي ټوک کې او بله یې په پټه خزانه کې خوندي ده.

د پښتانه شعراء د لومړي ټوک د خوندي بدلي لومړی او وروستی برخي په دې ډول دي:

راسه دلبري ته زما د زړه کتره یې
هم ته ښایسته یې
زړګی مې ویني، ته د ناز په ننداره یې
د ګل دسته یې
دا ستا په عشق کې مې پردې خپل کلي کور کی
بل دې پر ما اور کی



زه که پاچا حسین هوتک یم ستا ګدا یمه
په واویلا یمه
دا ستا له عشقه زه په دوه کونه رسوا یمه
تل په ژړا یمه

اوس هم د پښتون واکمن شاه حسین هوتک تر مشری لاندې د نارنج د ادبي دربار مستقیم او یا د دې دربار سره د لیري او نژدې ګډونوالو او لېوالو نومیالیو څېړو یادونه کوم:

**( ۲ ) محمد هوتک:**

محمدهوتک د هوتکي پېر نوموتی لیکوال او د پټې خزانې مؤلف دئ، محمد هوتک د داود خان هوتک زوی او د قادر خان هوتک لمسی دئ.

د محمد هوتک د مشرانو آریزه مېنه مرغه ده، د دوی مشران لومړی د مرغې څخه د کلات سیوري او بیا د هغه ځایه د اوسني کندهار په لوېدیځه څنډه کې د کوکران تاریخي کلي ته راکډه سوي او همدلته یې استوګنه غوره کړېده.

د ۱۰۸۴ هـ ق کال د رجب د میاشتي پر دیارلسمه نېټه محمدهوتک په همدې کلي کي وزېږېد. کله چي د خپل پلار په سیوري کي د زده کړو تر پړاوه ورسېد په کم عمر خپل نومیالي پلار ته په شاګردی کښېناست او د هغه څخه یې فقه، ادبي فنون، قافیه، عروض، اصول، تفسیر او همدارنګه بیان او معاني زده کړل.

وروسته محمد هوتک د شاه حسین په غوښتنه په ۱۱۳٦ ق کال د ارګ تر درشله ځان ورساوه، هلته یې سترو ادبي خدمتونو ته په مړانه ملا وتړله.

محمد هوتک وایي چي دده عمر په لیکنه او د کتابونو په کتنه کي تېر سوی دي. د همدې ویاړونو له برکته هغوی وتوانېده چي ډېر تألیفونه وکړي.

هغه د کتابونو د کتنو تر څنګ په بېلابېلو سیمو کي د ګرځېدنو او د خلکو څخه د پوښتنو او ګروېږونو په برکته پټه خزانه هم تصنیف او په هغه کي یې د پښتو ژبي ۵۱ تنه شاعران او شاعراني راپېژندلي دي.

محمد هوتک پخپل دغه ادبي او تاریخي زیار سره پښتو ژبي ته د لوی خدمت مصدر ګرځېدلی او د دې لوی خدمت له امله به یې افغان ولس تر ابده ممنون وي.

محمد هوتک د نارنج په ادبي دربار کي د منشي په توګه د زیاتو کلونو لپاره د دندې تر سره کېدو وروسته د نادري تاړاک تکالیف هم ګاللي او د څه مبهمو مهالونو تر تېرېدو وروسته داسي ښکاري چي بیرته د کلات سیوري ته کډه سوی دئ او دا لوی پوه او ستر لیکوال هملته مړ سوی دئ.

د دوی د پاته کسانو او همدارنګه د هغه د قبر او زیارت په اړه درې پېړۍ وروسته څه پر مختګونه رامنځته سوه.

استاد محمدمعصوم هوتک په سل پکړۍ او یو پوړني نومي اثر په ۱۲۰ مخ کي

ښکاره کوي، چې په ۱۳۵۵ ش کال کې اروابناد استاد محمدابراهیم عطایي په کندهار مجله کې د دې څرک ورکړ، چې د کندهار ښار په ښکاپر دروازه کې استوګن د اروابناد احمدعلي اخوندزاده کورنۍ د همدغه محمدهوتک پاته کسان دي.

ددې کورنۍ مشر د ممو نیکه په نامه شهرت درلود او هغه همدا محمدهوتک دئ، د غلجایي کلات په سیوري کې په دې نوم یو کلی هم سته، که څه هم کاندید اکاډمیسین اروابناد استاد محمدانور نومیالي د لېمه مجلې په یوولسمه ګڼه کې ممو نیکه او محمد هوتک دوه بېل کسان بللي دي.

په هر صورت په ۱۳۵٦ هـ ش کال سرڅېړونکي زلمي هیوادمل او استاد حبیب الله رفیع کندهار ته سفر وکړ او د (سل پګړۍ او یو پوړنی) د ۱۲۱ مخ د لیکنې په حواله یې د اروابناد محمدیوسف ویران سره چې د اروابناد عطایي په لارښوونه یې پر دې څېړنه کار کړی و، د لیدني او همدارنګه دلته تر څه څېړنو او پوښتنو ګروپرنو وروسته یې ممو کلي ته هم سفر کړی او دا کلی او په دې کلي کې یې همدا قبر کشف او هغه یې د محمد هوتک وباله.

هیله ده اړونده دولتي چارواکي د دې نومیالي څېړونکي د نامه او سترو لاسته راوړنو د تلپاته یادونې په موخه د هغوی قبر هغه ډول ورغوي چې د دوی د شان سره ښایي.

## (۳) ملا یار محمد هوتک:

ملا یارمحمد هوتک د هوتکي دورې د مشهورو او نوموتو عالمانو او تکړه مدرسینو څخه و.

نوموړی د پښتون واکمن شاه حسین هوتک استاد هم و او واکمن د هغه څخه تفسیر، منطق او د بلاغت علوم زده کړي وه.

ملا یارمحمد هوتک د واکمن د شعر د سمولو او اصلاح کولو ویاړ هم درلود، ددوی د دې ویاړمنې دندې څخه ښکاري چې هغوی د نارنج د ادبي بانډار د ګډون تر څنګ د واکمن سره د ادبي تجاربو د شریکولو په چارو کې لوی لاس درلود.

محمد هوتک چې د نارنج د ادبي دربار منشي پاته سوی دئ، ملا یارمحمد یې د دې دربار د ګډونوالو عالمانو له ډلي څخه یو عالم او هغه یې استاد علماء او اعلم العلماء بللی دئ او دا هغه ستر القاب دي چې د هیواد په علمي تاریخ کې یې بېلګې لږ لیدل کېږي.

## (۴) محمدیونس توخی:

محمدیونس توخی د ملا محمداکبر زوی او د پټې خزانې لیکوال محمد هوتک هغه د نارنج د ادبي دربار د علماوو په ډله کې یاد کړی دئ او یادونه کوي چې د کندهار دجامع امامت هم د دوی پر غاړه و.

## (۵) ملا زعفران تره کی:

د پټې خزانې لیکوال اروابناد محمد هوتک دغه ملا زعفران د پښتون واکمن شاه حسین هوتک د زوی شهزاده محمد استاد او هم یې د پاچا کینې لاس بللی دئ او د نارنج د ادبي دربار د برخوال په توګه یې راپېژني.

ملا زعفران په راضي، طب او حکمت کې ښه لاس درلود. محمد هوتک دا هم وایي چې: "... یوه ورځ د پاشده ظل الله په قصر کې مجلس و، او فضلا او علماء سره راټول، ناګاه احوال وسو، چې قاصد راغلی دی او پیغام یې له لیري ځایه راوړی، ملا زعفران دباندي ولاړ یو ګړی پس بیرته مجلس ته راغی او زېری د فتح د شال او ږوب یې وکا او دا بیتونه یې عرض کړل:

د حسین پاچا د بخت ننداره ګوره
چې یې فتح په لښکرو ږوب و شال کا

چي دا زېړى يې راوړى دى حضــور ته
نو زعفران انعام پر سر زعفراني شال کا

**(٦) ملا باز توخى:**

ملا باز توخى د هوتکي دورې د شاعرانو څخه و، په ۱۱۴۱ هـ ق کال يې په اتغر کي ژوند کاوه، علوم يې په هند کي زده کړي وه او په حکمت او منطق کي يې شاګردان لرل او هغوى ته يې تدريس ورکاوه.

دا چي د محمد هوتک ملګرى و نو په اغلب ګومان به د نارنج د ادبي دربار د برخي اخيستو او د واکمن او نورو پوهانو او اديبانو د کتو او د هغوى سره د ناستو پاستوو ياړ ور په برخه و.

**(٧) بهادر خان:**

پښتون واکمن شاه حسين هوتک هغه ته ورور ويل، دا چي د دوى د دوستۍ پوله د ملګرۍ او يا معمولي ناستي څخه لوړه او تر وروري پوري رسېدلې وه نو حتمي به د نارنج د ادبي دربار د ګډون وياړ هم ور په برخه و. دا چي د ده خپل مجلسونه به هم د عالمانو او اديبانو څخه خالي نه وه او ده هر مهال د عالمانو او پوهانو ډېر درناوى کاوه، دا ممکنه نه ده چي د نارنج ماڼۍ د لوى او په شاهي کچه د علمي کانون پاملرنه دي پخپل څنګ کي د دغسي وتلو څېرو لور ته وانه وړي او هغه ته دي پخپلو دايمي او منظمو ناستو کي د ګډون بلنه ور نه کړي.

د بهادر خان د شعر بېلګه پټې خزانې په ۱۲۵ مخ کي په دې توګه خوندي کړېده:

بېلتون دي زور دئ تر لېمو مو سهار نم څاڅي
لکه شبنم څاڅي
دا سره ياقوت مي په لمن کي ستا په غم څاڅي
لکه شبنم څاڅي
ګوره ليلى باران د اوښو ستا په چم څاڅي
څکه پر چم څاڅي

**(٨) رېدي خان مومند:**

استوګنه يې د کندهار د مومندو د کلي سره چي د اوسني کندهار په ختيځه څنډه کي پروت دئ تړاو لري.

دى د هوتکي پېر د لويو اديبانو څخه دئ، د بلغات په علومو ښه پوهېدى، فقه، تفسير او صرف و نحوه يې په لوړه وړتيا سره تدريسول، ډېر سخي او لاس خلاصي پښتون و، د غزلو، مثنوي او څلوريځو بشپړ ديوان لري.

محمد هوتک پخپل کتاب پټه خزانه کي ليکلي، چي پښتون واکمن شاه حسين هوتک د دې مېړه محمودنامه چي د واکمن ورور شاه محمود هوتک ته يې ليکلې وه اورېدلې او ده ته يې زر طلاوي په انعام کي ورکړي دي. د دې ليکني او همدې ځرګندونو څخه ښکاري چي د يوه داسي وياړل سوي ناظم شتون به د واکمن په ادبي دربار کي په پرله پسې توګه او يا کله کله د امکان څخه خالي نه و.

څکه هغه په محمود نامه سره د واکمن په زړه کي ځاى موندلى او په زړونو کي ځاى سوى مېړني په آساني سره د زړونو او ذهنونو څخه نه وزي.

**(٩) حافظ عبداللطيف اڅکزى:**

د پټې خزانې د ليکوال محمد هوتک په وينا عبداللطيف اڅکزى د شاه حسين هوتک د دورې په ټولو فاضلانو او ظريفانو کي وتلې څېره وه. د ده اصلي ټاټوبى بوستان ښوول سوى چي د کوټې په شمال ۳۰ کيلومتري واټن کي پرته پښتني سيمه ده، محمد هوتک يادونه کوي چي پلار يې غلام محمد نومېدى. هغه کندهار ته راغلى او په ماشور کي اوسېدى، زياتره به يې پندونه او نصيحتونه په ظريفه توګه په شعر کي ځايول.

په يقيني توګه نه ده څرګنده چي د نارنج ماڼۍ ادبي باندار به د هغوى د شتون برخه لرلې وي که يا؟ څکه محمد هوتک وايي چي

کله کله زه دی وینم، دا چې د نېغي کتني خبره راغلې ښايي په همدې کله کله کې يې د هغوی په ملتيا د دې درانه ټاټوبي کاته نصيب سوي وي او يا دا هم احتمال لري چې د دې وياړه پاته راغلی وي.

### (۱۰) نصرالدين خان اندړ:

د محمدزمان خان زوی دئ، د هوتکي پېر د شاعرانو په لړ کي د يادوني وړ دئ. نصرالدين خان اندړ د پښتون واکمن شاه حسين هوتک د واکمنۍ پر مهال د غزني څخه کندهار ته راغلی دئ. د خپل لوړ اديبانه موقف له مخې د نارنج ماڼۍ د ادبي دربار د شاعرانو تر څنګ د عزت څښتن ګرځېدلی دئ. لکه چې محمد هوتک وايي: "په مقتضا د طبع صافي په خدمت د صدر دوران بهادر خان ورسېد او په سلک د ملازمانو د پادشاه ظل الله منسلک سو ځکه چې شجاعت او بهادري يې په طينت کي وه، نو په لړو ورځو يې (د) پادشاه او بهادر خان عاليشان له خوا عزت وموند".

پټه خزانه د ده د شعر په اړه دا ډول څرګندوني لري:

"نصر په بزم او رزم کي د نصر خاوند دئ".

### (۱۱) نورمحمد توخی:

نورمحمد توخی د ملا يارمحمد خان زوی او د هوتکي پېر د مشهورو او نوموتو مدرسو عالمانو څخه و، د واکمني کورنۍ خصوصي او ځانګړی ښوونکی و، د دې موقف درلودل ښکاره کوي چې هغوی به حتماً د نارنج ادبي باندار د ګډون وياړ هم درلود. نورمحمد توخي په پښتو ژبه شعر هم وايه.

دغه ياد سوي کسان تر ډېره بريده په يقيني توګه ښکاري، چې د نارنج د ادبي دربار دايمي او يا مؤقتي ګډونوال دي وي، دا چې د شاهانه پېرزوينو او ادبي لېوالتياوو په سيوري کي به حتمي له دې کسانو څخه نورو څو څو چنده زياتو کسانو هم برخه لرله.

ولي د نادري تاړاک ظالمانه پېښول هغه څه د منځه وړي چې دغسي توکي دي ځني په ښکاره څرګند سي. په را وروسته کي هم په منظمه توګه د دغه ايښوول سوي علمي او ادبي بنسټ د پخېدو لپاره کار نه دئ سوی او په يو ډول نه يو ډول زموږ دغه فرهنګي هستي د خاورو سره خاوري سوې ده او د نه پاملرني او بې غوري دوړو او خاورو راڅخه پټه کړې ده.

نو نه څرګندېږي چې د يادو سوو مېړنيو تر څنګ به نور کسان څوک وه. او د هغوی د علمي زيارونو هغه شهکاره لاسته راوړني به څه وي؟ څو اوس د پښتو او پښتنو د هويت او هر اړخيزه علمي وړتياوو او پياوړتياوو په برخه کي د سيالانو د سيالی يوه ستره تکيه وای.

دا چې د دې بحث د غځېدو ته مو د پورته څرګندونو پر بنسټ لاسونه تړلي دي نو ځکه دا برخه همدلته ترم، او د دې لنډې ليکني په پای کي وړ ګڼم، د نارنج د ادبي دربار د بنسټ ايښودني او په شاهي پېرزوينو سره د هغوی د پالني له امله د پراخو او وسيعو ډېوو په رڼا کي د هغو آثارو يادونه وکړم، چې د دې دربار د نېغ په نېغه او يا يو ډول نه يو ډول د دې وياړمن مرکز له اغېزو څخه د فرهنګي وياړونو په توګه د تل لپاره د يادګار په توګه پاته سوي دي.

دغه لوړ او د خپل مهال او همېشني وياړ تلپاته آثار په دې توګه يو په يو په ډېره لنډه توګه يادوم:

### (۱) قصص العاشقين:

د شها او ګلان مشهوره کيسه ده، چې ستر نوميالي بابوجان بابي په ۱۱۲۹ هـ ق کي په پښتو نظم کړېده.

**(۲) افضل الطرایق:**

په اخلاقو کې د پیرمحمد میاجي لیکنه ده، دی د هوتکو د دوو نومیالیو څېرو هر یوه شاه محمود هوتک او شاه اشرف هوتک مشاور او مرشد پاته سوی دئ. حتماً به د نارنج د ادبي دربار د ویاړونو، پېرزوینو او وخت په وخت د مادي او معنوي ښېګڼو او اغېزو سیوری د دوی تر ذهنه هم رسېدلی وي، ځکه د هوتکي واکمنو نژدې کس و. نو ځکه یې دا قلمي لاس ته راوړنه د نارنج د ادبي دربار د علمي څراغونو د روڼاوو سره د تړاو په کانې تللای سو. افضل الطرایق یې د عقایدو او اخلاقو څخه رغېږي.

**(۳) القرایض في رد الروافض:**

دا هم د پیرمحمد میاجي لیکنه او پښتو نظم دئ.

**(۴) مسایل ارکان خمسه:**

دا د ملا یارمحمد هوتک تألیف او محمد هوتک د پټې خزانې په پاڼو کې څرګندوي چې د نارنج په ادبي دربار کې کښل سوی کتاب دئ.

**(۵) پټه خزانه:**

دا د لوی څېړونکي محمد هوتک خواره واره یادښتونه دي چې د پرله پسې پوښتنو، ګروېږونو او پلټنو وروسته یې د پښتون واکمن شاه حسین په هڅونه راټول کړي دي.

محمد هوتک وایي: "چې ما له ډېرشو کالو راهیسي د ډېروشاعرانو د پښتنو احوالونه راټول کړي دي او هغه وقتونه چې د پښتونخوا پر لتو ګرځېدم له وګړیو څخه مي ډېر ښه حالونه اورېدلي دي او اوس هغه ټول د خپل پادشاه ظل الله په غوښتني کاږم".

پټه خزانه د ۱۱۴۱ هـ ق کال د څلورمي خور پر ۱۶ مه د جمعې په ورځ پیل سوې او د ۱۱۴۲ هـ ق کال د کوچني اختر پر ۲۴ مه بیا هم د جمعې په ورځ پای ته رسېدلې ده، چې ۵۱ ته شاعران او شاعراني پکښې راپېژندل سوي دي.

دا کتاب لومړی د لوی استاد ارواښاد علامه حبیبي په سمون، لمن لیکونو او نښلونو سره په ۱۳۲۳ ش کې په کابل کې د پښتو ټولني له خوا خپور سو، دوهم ځل په ۱۳۳۹ ش کې د دارالتألیف د ریاست له خوا په تهران کې چاپ سو، بل ځل په ۱۳۵۴ ش کې د اطلاعاتو او کلتور وزارت د پښتو د تقویې او انکشاف د آمریت له خوا د ارواښاد لوی استاد علامه حبیبي د یوې نوي سریزې سره چې د کورنیو او باندنیو شکمارو په جواب کې وه خپور سو، څلرم چاپ یې په ۱۳۵٦ ش کال کې د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځي له خوا وسو.

پاته دې نه وي چې د پټې خزانې قلمي نسخه چې د ۱۱۲ مخونو لرونکې ده تر ډېره د اطلاعاتو او کلتور وزارت په خطي کتابتون کې خوندي وه.

**(٦) د پښتون واکمن شاه حسین هوتک دېوان:**

دا شعري دېوان د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتک په قلم راټول سوی، د نادري تاړاک څپو دا دېوان د نورو ډېرو پښتو لیکنو او آثارو او د نارنج د ادبي دربار د پیاوړي او غني کتابتون د ټولي هستی سره یو ځای راڅخه د منځه وړی دئ. د شاه حسین هوتک د دېوان څخه یوازې اوس راته یوه یا دوې بدلي پاته دي.

**(۷) محمود نامه:**

د ریدیخان مومند د مغزو او شاعرانه ذهن محصول څلور زره بیتونه دي، چې د

میرویس نیکه او شاه محمود هوتک د خپلواکۍ غوښتني پېښي يې پکښې خوندي کړي دي. دا بیتونه د تاریخ په روښانتیا کي خاص ځای لري.

د دې بیتونو قدر او په لوړه کچه ستاینه د نارنج په ادبي دربار کي هغه مهال سوېده، چي پښتون واکمن شاه حسین هوتک هغه ته د ویلو وروسته زر طلاوي ورکړې او په دې توګه يې د دې ادبي دربار د ناز او مادي و معنوي ستاینو او ښېګڼو سیوری د قلم او فکر د غځولو او هڅولو په موخه لا غوړولی او تر ډېرو او لیریو يې غځولی او رسولی دئ.

## (۸) ګلدستهٔ زعفراني:

د ملا زعفران لیکنه ده، چي د نارنج د ادبي باندار و هڅوونکي ډېوې ته يې په طب او حکمت کي لیکلې ده.

## (۹) تحفه واعظ:

د محمد حافظ واعظ له خوا لیکل سوی کتاب دئ، چي د مذهبي نصایحو او د امر بالمعروف خوند او رنګ يې د ورایه ځرګندېږي. محمد هوتک وایي هغه په رښتیا ویلو مشهور دئ، د پاچا او لویانو په مخ کي هم د خدای امر په ښکاره وایي.

(۱۰) محاسن الصلوة:

د محمد عادل بړېڅ د ذهن محصول دئ، چي تر ډېره يې د لمانځه مسئلې پکښې رانغښتي دي.

## (۱۱) جامع الفرائض:

د محمدیونس توخي له خوا په پښتو ژبه لیکل سوی اثر دئ.

## (۱۲) نافع المسلمین:

د ملا نورمحمد له خوا د اخلاقو او فقهي په برخه کي راغونډه سوې لیکنه ده، چي پخپل ځای کي د ارزښت وړ ده. محمد هوتک په پټه خزانه کي لیکي، چي: دا کتاب يې په نامه د شاه حسین کښلی دئ، چي د فقه او اخلاقو د معتبرو کتابو څخه يې اخیستنه کړېده.

## (۱۳) خلاصة الطب:

دا هم د پیاوړي څېړونکي محمد هوتک تألیف دئ، چي په ۱۱۳۹ هـ ق کي يې د پښتون واکمن په ادبي دربار یا د نارنج په هسکه ماڼۍ کي د هغه و حضور ته وړاندي کړی دئ او د پښتون واکمن د مادي پېرزوینو تر څنګ يې د مادي نازېدو په توګه د زرو طلاوو انعام هم تر لاسه کړی دئ. دا کتاب د طب او د رنځونو د علاج او درملني په اړه دئ.

## (۱۴) خلاصة الفصاحت:

دا هم د پټي خزانې د مؤلف محمد هوتک د تېز او روڼه ذهن له برکته منځته راغلی اثر دئ، چي د نارنج د ادبي دربار د هڅونو او پېرزوینو په رڼا کي د لیکلو تر درشله رسېدلی او موضوعات يې د فصاحت علوم دي.

## (۱۵) د محمد هوتک دېوان:

محمد هوتک لیکي:

"ما له یو دېوان د اشعارو هم سته، چي په دې وخت کي پر ردیف برابر او مدون سوی دی او غزلونه او قصاید او رباعي لري، کله چي طبع قاصر، میل د شعر او وینا وکا شعرونه کاږم او موزونان د روزګار يې خوښوي...".

د شعر نمونه يې په پټه خزانه کي د ۱۱۳ مخ څخه تر ۱۱٦ مخه پوري خوندي ده.

پاته په (۵۰) مخ کي

عبدالنافع ثنا

# د هوتکي دورې سیاسي ځانګړتیاوي

افغانستان په یوه داسي موقعیت کي قرار لري چي د هر چا لاره پر سپره ده. هغه که سکندر د نړۍ د نیولو خوبونو پسي را اخیستی دئ او یا د ورېښمو سوداګر د شتمنۍ په ګټلو پسي روان دئ. همدغه ټکی دئ چي د تاریخ په هر پړاو کي څلکو د دې لاري د کنټرولولو هڅه کړېده. یا خو د دې لپاره چي د خپل رقیب مخه یې ډب کړې وي او یا د دې لپاره چي خپله لار له ډب کېدلو څخه ژغورلې وساتي. افغانستان له جغرافیایي پلوه په داسي نقطه کي ځای لري چي د مرکزي آسیا، سویلي آسیا، منځني ختیځ او ختیځي آسیا د وصل ټکی دئ. په دې توګه افغانستان په نېغه توګه د آسیا او غیر مستقیم ډول د ټولي نړۍ لپاره د څلور لاري دریځ لري. ځکه نو هر څوک هڅه کوي چي د څلور لاري واک په لاس کي ولري.

تر میلاد وړاندي هخامنشیان، سکندري مقدونیایان، یونانیان، باکتریان او هندي موریان او له میلاد څخه وروسته کوشانیان، هفتلیان او تر دوی وروسته بېلابېل هندو او بودایي واکمنان د اوسني افغانستان پر قلمرو باندي واکمن پاته سول تر څو چي اسلام راورسېد. د اسلام له راتګ وروسته سامانیانو، غزنویانو، غوریانو، خوارزم شاهانو، چنګیزي مغولو، تیموري مغولو او نورو یو په بل پسې افغانستان په واک کي وساته. د شپاړسمي او اووه لسمي زېږدیزي پېړۍ پر مهال افغانستان د ګاونډیو زبرځواکونو له لوري پخپلو منځونو کي ووېشل سو. ختیځ لور د هند واکمنو تیموري مغلو، شمال لور د منځنۍ آسیا ترکي نژاده شېبانیانو او لوېدیځ لور فارسیانو تر خپل واک لاندي راوست. هرات په پرله پسې توګه د فارس، بلخ د شېبانیانو او کابل د مغلو د ولایتونو په توګه پاته سول. دوه نور مهم ولایتونه کندهار او د بدخشان وو، چي دا دوه د خپلو موقعیتونو له امله وخت په وخت له یو څخه بل لاس ته ولوېدل.

کندهار د تاریخي پړاوونو په ترڅ کي د سکندر، موریانو، باکتریانو، بابلي یونانیانو، اسکائیانو، کوشانیانو، ساسانیانو، صفاریانو، غزنویانو، غوریانو، سلجوقیانو، خوارزم شاهانو، چنګېز او مغلو تر لاسونو تېرېږي. د شپاړسمي او اووه لسمي پېړۍ په منځ کي د هند مغل او د ایران صفویان له یو بل سره د کندهار د نیولو پر سر سیالي کوي چي په دې ترڅ کي څو ځله د یوه له لاس څخه د بل هغه ته ولوېد، څو په ۱۶۴۸ م کي صفوي شاه عباس ونیوی او تر ۱۷۰۹ م پوري، کله چي په لومړي ځل د سیمي هستوګن اولس د خپلي خاوري د خپلواکي واکمنۍ جرئت وکړ، د همدې صفویانو په لاس کي پاته سو. شپاړسمي او اووه لسمي زېږدیزي پېړۍ او یا په بله اصطلاح د افغاني خاوري د تجزیې پېر هغه مهال و کله چي په اروپا کي د منځنیو پېړیو زر کلن مطلق العنانیت مخ پر ځوړتیا و او په مقابل کي یې د رنسانس د ادبي، سیاسي، ټولنیز، اقتصادي او عامه فکري انقلاب د

غورېدو په ځنګ کې د عامه مذهبي عقایدو د ترمیم لړۍ په چټکۍ سره روانه وه. مانا دا چې د نړۍ په بل اړخ کې د بشریت د نوي ویښتابه ځرکونه پر ښکاره کېدلو وو. هلته د مذهبي مطلق العنانۍ او فیوډالیزم ریښې پر ختلو وې. د نړۍ په دې اړخ کې لا دا خبري د خوب او خیال په بڼه وې. لکه مخکې چې یادونه وسوه، نیواکګرو دا سیمي د دې لپاره نیولې چې یو خو سوداګریزي، پوځي او ستراتیژیکي لاري پخپل کنټرول کې وساتي او له بل پلوه له نیول سوو سیمو څخه باج ټول کړي. د دې تر څنګ د دې سیمو د نیواک لګښت هم د سیمي د هستوګنو پر غاړه و، ځکه دوی وو چې باید د خپلو باجونو له لاري یې د واکمنانو د عیاشۍ، هوس پرستۍ او ظلمونو لګښتونه ورته برابر کړي وای. داسي ځکه شوني وه چې لا خو د دې سیمي خلک د بدویت له ځنځیرونو نه وو خپلواک. بدویت په دې مانا چې خلک ځکه یو ځای اوسېدل او یا یې د کورنیو او ټبرونو پدېدې ټینګې کړي وې چې په همدې کې یې خپل خوندیتوب باوري ګڼی. یو چا ځکه بل څوک نه واژه چې په مقابل کې به یې د وژل سوي کورنۍ او یا ټبر خلکو د خپل سړي غچ اخیستی او په دې توګه نو د ده د وژل کېدني شونتیا هم ډېره وه.

د دې حقیقت په پام کې نیولو سره، هري کورنۍ او ټبر د خپلو اړونده چارو د تنظیم لپاره چې مهم یې پکښې د ځان ساتني او غچ اخیستني کارونه وو، یو سرخېل ټاکلی و. همدغه سرخېلان وو چې د بهرنیو نېواکګرو د نېواک تر ټولو ستري آلې وې ځکه دوی ته به یې ځیني مراعتونه منل او په دې توګه به یې د ټول اولس برغ خپاوه. همداراز به یې د بېلابیلو ټبرونو په منځ کې د نفاق او دښمنۍ اچولو له لاري خپلي نېواکګرۍ ته پیاوړتیا او دوام بخښی. د دې خبري ښه ثبوت تر دې بل نه سي کېدلای چې ګرګین ابدالیان له کندهاره وشړل او د هغوی مځکې یې غلجیانو ته ووېشلې او په دې توګه یې د دې دوو ټبرونو تر منځ تاریخي دښمني واچوله چې په مټ یې نیواکګرو کولای سوای هر څنګه چې یې زړه وغواړي، یوه د بلي په وړاندي وکاروي. روحانیونو یا خو د خان د ټوک د قطع کېدلو له وېري او یا هم د نیواکګرو له لوري د مادیاتو د لاسته راوړلو په خاطر بږغ نه پورته کاوه.

مرحوم غبار په (افغانستان در مسیر تاریخ) کې لیکي، چې یوازې د کندهار باج شپږ څلوېښت زره پسونه، پنځه څلوېښت زره آسونه او څو زره خرواره غله کېده. د نېواکګرو ګټه یوازې څو محدودو کسانو ته او هغه هم په محدوده کچه رسېدله. نور عامه کارونه نه خو د نیواکګرو د لاسه کېدل او نه یې هم اړتیا ورته درلوده. د دې کار اثبات په دې کېدای سي چې بې له دې چې د هند مغلو په کندهار کې چهل زینې د خپل یوه هوس د پوره کولو په خاطر جوړې کړې او یا یې د خپلو ارګونو د استحکاماتو په برخه کې کار وکړ، نور نه خو د مغلو، نه د صفویانو او نه هم له هغوی وړاندي نیواکګرو کومه عامه پروژه تر سترګو کېدای سي. په دې توګه ټولو نیواکونو له هماغه پیله زېښاکي ځانګړنه درلودلې ده.

کندهار چې هغه مهال یې په قلمرو کې له غزني رانیولې بیا تر سیستانه پوري سیمه پرته وه، د ابدالیو او غلجیو تر منځ وېشل سوی و، چې د سلطان ملخي او ابدالیانو تر منځ د یوه تړون له مخې یې وېش د جلدک سیمه په ګوته سوې وه. سلطان ملخي توخي د غلجیو خاني کوله او سلطان حیات د ابدالیانو هغه چې وروسته نومړی د دولت خان سدوزي له لوري د هیواد پرېښوولو ته اړ سو.

لکه چې مخکې وویل سوه، کندهار صفوي شاه عباس له مغلو څخه ونیاوه. هغه د خپلو متاخرینو په پرتله د واکمنۍ په دود پوه و او د کندهار د خلکو په وړاندي یې، سره له

دې چې سنيان وو، ښه دريځ غوره کړی و. له شاه عباس وروسته شاه سليمان راغلی چې يو عياش سړی و. وروسته يې زوی شاه حسين واک ته ورسېدی چې تر پلار بدتره و.

د (تاريخ ايران پس از اسلام) ليکوال اقبال آشتياني ليکي: "اولين حرکت زشتي که از او سر زد، نصب شاهنواز خان گرجي بود به حکومت کندهار و اين حاکم بدسيرت همان است که به لقب گرگين خان معروف شده و موجبات عصيان افاغنه و انقراض سلسله صفوی را فراهم ساخته است".

گرگين په خپل راتګ سره لومړی له دولت خان سره ومو ښتي چې غوښتل يې د گرگين مخه ونيسي. د دولت خان پر مېنه يې بريد وکړ او دی او زوی يې نظر محمد خان دواړه ووژل. دوه زامن يې زمان خان او رستم خان په تېښته بريالي سول، چې بيا يې وروسته په ټکي او چل باندي رستم هم راوغوښت او ويې واژه. له دې سره سم يې د ابداليانو مخکي غلجيانو ته ووېشلې څو وکولای سي هغوی د ځان په پلوی ودروي. په دې توګه د ابداليانو او غلجيو تر منځ د تربګنی زړي و شيندل سوې. دا چې له يوې خوا د ابداليانو خاني نه وه او بل خوا سلطان ملخی هم په منځ کي نه و، نو ميرويس خان هوتک چې مور يې د سلطان ملخي لور او مېرمن يې له ابداليانو ښځه وه او خپله هم يو خو د مخوري کورنۍ او بل پوه، ځيرک او تجربه ناکه سړی و، د غلجيو او په ټوليزه توګه د کندهار مېشتي اولس د خانۍ لپاره تر ټولو وړ سړی و. همغه و چې ميرويس نيکه د سيمې د اولسي مشر په توګه را څرګند سو او د خپلي ځيرکتيا له امله ګرګين ته دونه نژدې سو چې د کلانترۍ دنده يې ورکړه خو دا چې ميرويس خان د خپلو سوداګريزو سفرونو پر مهال د تر لاسه کړو تجربو او پراخې ځيرکۍ او پوهې په مټ د اولسونو د حق او خپلواکۍ غوندي پراخ مفاهيم درک کړي وو، د ګرګين د څو ورځو د مادي امتيازاتو تر اغېز لاندې را نغلی او د ګرګين هغه ظلمونه يې چې پر کندهاري اولس يې کوله، جدي ونيول.

دلته يوه خبره مهمه ده، چې په لومړي سر کي ميرويس نيکه هڅه کړې ده چې د شکاياتو له لاري شاه حسين صفوي د ګرګين سملو ته وهڅوي څو په دې توګه د کندهار اولس له بدي ورځي وباسي. د دې مانا دا ده چې د ميرويس نيکه لومړی اقدام چې شاه حسين ته شکايت ليک استول، د يوې انقلابي پروسې لومړی (ابتدايي) بڼه ده. دا چې انقلاب د ظلم په وړاندي د غبرګون نوم دئ، دلته دا خبره روښانه کېږي چې د ګرګين د ظلم شدت ميرويس نيکه د غبرګون ښوولو ته اړ ايستی دئ. که څه هم دا غبرګون په لومړي سر کي ډېر شديد نه دئ، بلکي له لوی احتياط سره مل دئ او هغه داسي چې ښېله دې چې په کوم فزيکي او يا له تاوتريخوالي ډک غبرګون لاس پوري کړل سي چې پايلي به يې يقيناً خرابي وای، په يوه ساده غبرګون لاس پوري کوي او هغه د خپلو دردونو څرګندونه ده. دا بايد په پام کي ولرو چې د هر ظلم لومړنی غبرګون ساده اه وي او وروسته پرمختللې بڼه غوره کوي. وروسته چې کله له يوې خوا د ګرګين ظلمونه شدت مومي او له بلي خوا ميرويس نيکه په اصفهان کي د شتون پر مهال د صفوي دربار د کم ځواکۍ او غفلت په بڼه کي تر شکايت ور آخوا د يوه بل ګام د پورته کولو لپاره شرايط چمتو ويني، بيا نو جرګه رابولي او پر نورو انقلابي اقداماتو غور کوي.

دلته زه هڅه کوم دا ثابته کړم چې د ګرګين په وړاندي د افغانانو پاڅون د انقلاب په هغو معيارونو بشپړ دئ چې نننی سياسي علوم يې په ګوته کوي، ځکه په اولس کي يې خوځښت ژوند مومي چې د نن په څېر د کومي

محدودي سیاسي کړي نه بلکي یو بشپړ ټولنیز خوځښت دئ او د ټولني هر قشر پکښې ګډون لري. له دې ځانګړني سره په ځنګ د ګرګین په وړاندي پاځون د آرام پیل، شدت او اوج ټکي لري. مانا دا چي دا یوه ناځاپي او پر تشو احساساتو ولاړه د څو بلواګرو حرکت نه و، بلکي د پوره تدبیر او سنجش څخه برخمنه او پر منطقي تسلسل ولاړه څو پړاویزه پروسه وه. کله چي انقلاب صورت مومي، بیا هم موږ وینو چي د انقلاب یوه عمده ځانګړنه ښکاره کوي او هغه دا چي څه موده نظام د ځان سمبالوني په چاره کي تېروي او کوم غیر منطقي اقدام نه کوي. موږ وینو چي د میرویس نیکه تر مړیني پوري موده د همدې حقیقت ښکارندوی ده. دا چي وروسته څه پېښېږي، د دې ټولني د ځواني سیاسي تجربې څرګندونه کوي ځکه د واک چاري د داسي یو چا په لاس ورځي چي هغه له یوې خوا د انقلاب له رهبرانو څخه نه و او له بلي خوا که د عمر له پلوه و، خو د اخلاقو او معنویت له پلوه یو بې تجربې کس و. موخه مي د میرویس نیکه ورور عبدالعزیز دئ. دغه هغه ځای دئ چي د آر انقلاب کړی شلېږي او خبره بلي خوا ته کږېږي. له همدې ځایه ده چي زه هوتکي دوره پر دوو برخو وېشم. یوه هغه برخه چي د میرویس نیکه تر مړیني وه او د انقلاب له غوښتنو سره سم پر مخ تله. بله د میرویس نیکه تر مړیني وروسته دوره ده چي که څه هم د انقلاب اوږد مهالو اهدافو ته خو کار وسو مګر نه په داسي بڼه څنګه چي د یوه بریالي انقلاب تقاضا وي، ځکه هر ګام باید د خپل زمان په نظر کي نیولو سره پورته سوی وای خو موږ وینو چي په ځینو ځایونو کي له بیړي کار واخیستل سو، لکه له ابدالیانو سره نښته او د فراه پر ډګر د اسدالله خان وژنه، همدا راز مخکي له دې چي پاچا د څو کلونو په تېرولو له څه ناڅه تجربې څخه برخمن سي، د اصفهان پر لور چي ورڅخه د سمدستي لپاره د کوم ښکاره خطر تمه نه وه، یرغل وروړل یې بله بېلګه یادولای سو.

دا چي د میرویس نیکه طرحي څنګه له ځان سره د ټول اولس ملاتړ ملګري کړ، د دې لپاره به د حبیبي صاحب دا خبره نقل کړم:

"که څه هم د دغسي نوابغو په پیدایښت کي ځیني تاریخي او اقتصادي او اجتماعي عوامل حتماً مؤثر وي مګر د نابغه خلق او ذات او شخصیت هم ډېر اثر لري او هر نابغه باید ځیني داسي صفات ولري چي د خلکو قیادت وکړای سي. د افغانستان په تاریخ کي ډېر سیاسي، جنګي، علمي، ادبي او روحاني نوابغ تېر سوي دي او یو له دغو څخه حاجي میرویس خان هوتک دئ چي دی موږ نابغه ګڼو، مګر دی نه لوی پادشاه او جهانکشای و او نه لوی عالم او دانشمند و، نه لوی لیکوال او ادیب و خو د لویو پادشاهانو سیاست مداري، د غښتلو جهانګیرانو دلاوري، د پیاوړ عالمانو دانشمندي او د اورژبو ادیبانو او خطیبانو غوندي اغېزناکه وینا او د لوړو روحانیونو په توګه یې روحي اغیزي درلودې".

په دې لړ کي د جرمني ټولنپوه ماکس ویبر یوه ځیرنه هم د پام وړ ده. هغه د واک د مقبولیت په اړه داسي نظر لري: دا چي ولي خلک د کوم چا واک مني او خبري ته یې پخپله خوښه غاړه ږدي، درې بڼې لري: کرشمه ای واک، دودیز واک او قانوني واک. کرشمه ای واک د ځانګړو افرادو په برخه وي چي هغوی له ځانه د زړه ورتوب او یا پوهي له لاري کوم خارق العاده استعداد وښیي. د داسي کسانو بیلګي هیټلر، مهاتما ګاندي او نور په ګوته کولای سو. دودیز واک داسي واک دئ چي د ټولني دود رواجونه یې کوم چا ته په برخه کوي لکه د خان، ملا، پیر او نورو واکونه. دریم واک قانوني واک دئ او هغه داسي چي په یوه نظام کي یو مقام د واکونو او صلاحیتونو سرچینه وي. هر څوک چي پکښې

نصبیږي، سمدلاسه د هغو واکونو څخه برخمن کېږي چې د داسې کسانو په بېلګه کې قاضیان، قوماندانان او نور یادولای سو. د واک د مقبولیت په اړه د ماکس ویبر پورتنی ډلبندي په پراخه کچه د منلو وړ ګرځېدلې ده. دلته کولای سو څېړلي مخکینی پوښتني ته راوګرځو چي میرویس نیکه څنګه وتوانېد چي د ټول اولس ملاتړ یې د ځان کړ. د دې خبري د شرحي لپاره د ماکس ویبر د ډلبندیو درې سره ډولونه د پام وړ دي. میرویس نیکه د علامه حبیبي صاحب د هغو خبرو پر بنسټ چي مخکي یادي سوې، د خارق العاده ځانګړنو څښتن و، نو ځکه یې په کرشمه ای واکمنتیا کي هیڅ خبره نسته ځکه هغه په رښتینې مانا یو نابغه و. د دودیز واک خبري ته یې هم مخکي اشاره سوې او هغه دا چي نوموړی یو څو پښتله د یوې پر نفوذه کورنی غړی و او ورسره په څنګ کي د مور له خوا له سلطان ملخي سره چي د غلجیو خان و او د مېرمني له خوا د ابدالیانو له خان سره اړوند و. په دې توګه ئې د دودیزي واکمنتیا خبره هم روښانه کېږي. کله چي په یو انسان کي کرشمه ای او دودیز واکونه رایو ځای سي، په دې صورت کي قانوني واک خپل مفهوم له لاسه ورکوي ځکه هیڅ اړتیا یې نه پاته کېږي. له دې ځایه ویلای سو چي میرویس نیکه د جامع واکمنتیا څښتن و او دا هغه واکمنتیا وه چي اولس بې له رشوته، بې له ډاره او بې له کومي ناوړي تمي په تمامه مانا ورته قایل و.

د افغانستان تاریخونه تر ډېره ځایه عمومي سیاسي جریاناتو ته چي تر نیوي ډېره یې د واکمنیو واک ته رسېدل او ړنګېدل جوړوي، د تاریخ نوم ورکوي په داسې حال کي چي دا د تاریخ یو نیمګړی تعریف دئ. تاریخ پخپله لمن کي د واکمنیو اوښتون را اوښتون، د خلکو اقتصادي حالت، ټولنیز ژوند چي پکښې دودونه او مذهبي رسومات راځي،

همدا راز د علمي تکامل پړاوونه او عمومي جغرافیایي بیانات ځای لري. له بده مرغه هغه تاریخونه چي افغانان یې د لوستلو لپاره په لاس کي لري، له یاد سوي جامعیت څخه برخمن نه دي. په دې توګه نو یوه خبره ګونګه پاته ده او هغه دا چي د یوه دولت په توګه هوتکي دورې په کندهار کي کوم د عامه ګټې کارونه وکړل او ټولنیزه وضعه یې له اقتصادي، علمي او فیزیکي زېربناوو له اړخه څومره واړوله؟ یوه خبره دا څرګنده ده چي د شاه حسین هوتک د واکمنی پر مهال خصوصاً ادب ته ډېر کار وسو ځکه هغه خپله هم شاعر و او له ادب سره ئې مینه درلوده.

د دې په څنګ کي پټه خزانه د خلکو د ژوندانه د عمومي وضعي په اړه داسي لیکي: "د رعایا په داد رسي او د داد خواهانو فریاد اوري. د ظالمانو لاس کوتاه دی او رعیت آرام دی".

که چیري په دې وخت کي پراخ کارونه سوي وي او تاریخي کتابونو نه وي ثبت کړي، بیا څو هوتکیان پخپله له ملامتی څخه خلاص دي او که چیري کار نه وي سوی، هم یې له ملامتی خلاصولای سو ځکه د میرویس نیکه د ژوندانه پر مهال ټولنه له یوې لویې ستړیا څخه د دمه کېدلو په حال کي وه او د بنسټیز جوړښت په برخه کي د کوم لوی کار تمه باید ونه کړو. له هغه راوروسته د شاه محمود تر مړيني پوري هوتکي واکمن په جګړو کي ښکېل وو او جګړې خورا زیات لګښت ځان ته کشاوه، نو ځکه د ټولنیزو کارونو لپاره لږ مالي او زماني توان په لاس کي و. موږ وینو چي په ایران کي هوتکي واکمنی آرامه ورځ و نه لیده او ټول ژوند یې له عثماني ترکانو، روسانو او ایراني باغي ډلګیو سره په جګړه کي تېر سو. په دې توګه هوتکي واکمنان په دې برخه کي تر زیاتي اندازې له ملامتیه خلاصولای سو خو زه په دې ځای کي شاه حسین هوتک ته څه نا څه د ملامتی

ګوته نیسم ځکه که په اصفهان کې افغانان په جګړو بوخت وو نو په کندهار کې خو آرامي وه. خصوصاً بیا د شاه محمود له مړینې وروسته خو یې له اصفهان سره اړیکې هم وشلولې او دا خبره هم نه سو کولای چې ده نو په اصفهان کې افغاني جګړې تمویلولې. دا موده د نادر افشار تر راتګ پورې شاوخوا لس کلونه په بر کې نیسي. لږ تر لږه ما داسې څه و نه موندلای سوای چې هغه دې په دغه وخت کې د کوم څرګند پرمختیائي کار یادونه وکړي.

دا خبره باید په پام کې ولرو چې هره تیوري، هغه که د تاریخ په بڼه وي او یا د استدلالي څېړنې په بڼه، باید د لیکوال له شخصي احساساتو او ړانده او بې دلیله قضاوته څخه خلاصه او پر حقایقو باندې ولاړه وي. همدې ټکي ته په پام سره د دې دورې یوه بله نیمګړتیا او که انصاف ورسره وکو نو مجبوریت په ګوته کوو او هغه دا چې دا دوره بیا هم د فیوډالیزم دوره پاتېږي ځکه خانان او د قبیلو مشران دي چې واک یې په لاس کې پاتېږي. د دې خبرې ښه دلیل دا دئ چې میرویس نیکه د خپل نبوغ له مخې د وضعې د حساسیت په پام کې نیولو سره ځان ته د پاچا د نامه ورکولو څخه هم ډډه وکړه او ځان یې د قوم د سپین ږیرې او مخور په توګه یاد کړ. دا کار د دې وخت او د دې سیمې یو مجبوریت و، چې باید د یوه ترخه حقیقت په توګه په هر حال کې منل سوی وای.

دلته د یوې بلې خبرې یادونه هم اړینه ګڼم او هغه دا چې ښاغلي حبیب الله رفیع د کندهار د تاریخ په اوږدو کې د سیمینار لپاره پخپله لیکلې مقاله کې د میرویس نیکه سیاسي بصیرت ته په قایلتوب دا یادونه وکړه، چې د میرویس نیکه سیاسي فکر باید د یوه نړیوال سیاسي مکتب په توګه راڅرګند کړای سي او په دې برخه کې باید کار وسي. دا خبره تر یوه ځایه د هرکلي وړ ده. هغه په دې توګه چې د مهاتما ګاندي غوندې د میرویس نیکه تجارب هم تر علمي څېړنې او سستم بندۍ لاندې نیول کېدای سي او د یوه افغاني سیاسي مکتب په توګه مطرح کېدای سي خو د میرویس نیکه د تجاربو سیاسي اړخ چې هغه د ستر هدف د لاسته راوړلو لپاره د دښمن د راپرزولو په موخه د هغه د غافلګیر کولو او له تکتیکتونو کار اخیستل دي، د رنسانس راوروسته د مکیاولینزم د سیاسي مکتب په بڼه چې بنسټ یې یوه ایټالوي سیاسي تیوریسټ (نیکولو مکیاولي، ۱۵۲۷ م مړ) وضع کړ، همغه د رنسانس د پیل په ورځو کې د ایټالیې تر څنګ په فرانسه او انګلستان کې په پراخه کچه عام سو او تجربې ئې هم وسوې. په انګلستان کې ئې د اغېز بېلګه موږ د انګرېز ډرامه لیکوال کریسټوفر مارلو په ډرامو کې موندلای سو. د دې تر څنګ د زړه ورتوب، قوم پالنې او له خپلې خاورې سره د مینې اړخونه خو یې له لویه سره په پښتنو کې موجود دي. په دې توګه نو د میرویس نیکه سیاست د یوه نړیوال سیاسي مکتب په توګه د مطرح کېدلو لږه شونتیا لري خو دا هم باید یادونه وسي چې په افغانستان کې، په تېره بیا په پښتنو کې، د سیاسي فکر او دولتدارۍ بنسټ همدا د میرویس نیکه تجارب دي ځکه تر ده وړاندې په پښتنو کې په دې کچه په سیاسي فکر او نبوغ باندې د دولتدارۍ په چارو کې ښکېلتیانه تر سترګو کېږي.

یو بل ټکی په دې توګه یادوم: دا خبره یو حقیقت دئ چې د اتلسمې زېږدیزې پېړۍ په وروستۍ برخه کې د فرانسې انقلاب د عامو خلکو د واکمنتیا پیلامه ده خو ښاغلي رفیع پخپله یوه مقاله کې دا هم څرګنده کړې ده چې د میرویس نیکه پاڅون د فرانسې تر انقلاب دوه اتیا (۸۲) کاله مخکې د عامو خلکو د واکمنتیا او دیموکراسۍ نمونه وړاندې کړې ده. دا خبره تر یوه بریده سمه ده خو د فرانسې

د انقلاب او د میرویس نیکه د پاځون تر منځ باید ځینو څرګندو توپیرونو ته هم پام واړوو او له احساساتو کار وانه خلو. لومړی خبره دا ده چې د فرانسې انقلاب د مستبدو پاچهانو څخه د عامو خلکو له خوا د واکمنی نیول و خو د میرویس نیکه پاځون د افغانانو له خوا له پردیو څخه د واکمنی نیول و. په بله مانا د فرانسې انقلاب یوازې او یوازې د دیموکراسۍ او د عام سړي د واک ته رسېدنې لپاره پاځون و او د میرویس نیکه هغه د آزادۍ لپاره پاځون و، چې تر ډېره ځایه یې په پرېکړه کولو کې خانان او فیوډالي ډوله مشران مطرح وو. دوهمه خبره دا ده چې د فرانسې تر انقلاب وروسته نه خو فیوډالیزم و پاتې (چې همدا فرانسه یې په لومړي سر کې د زېږېدنې ځای دئ او بیا کمځواکه کېدنه یې د رنسانس له پیل څخه لیدل کیږي) او نه هم د پاچهۍ نښه پاتې شوه خو بر عکس، تر هوتکي پاځون وروسته نه یوازې دا چې فیوډالیزم پر حال پاتې شو، تر څنګ یې واکمني د پاچهۍ بڼه غوره کوي. بله خبره دا ده چې په فرانسه کې د هغه انقلاب راوروسته د خلکو واکمني تر نن ورځې پورې پائېدلې ده خو موږ ګورو چې په افغانستان کې تر هوتکي پاځون څه دپاسه درې سوه کاله وروسته هم واقعي ډیموکراسي خوب او خیال ښکاري. په دې توګه نو د ډیموکراسۍ د نمونې په توګه د میرویس نیکه پاځون د فرانسې له انقلاب سره باید سم نه کړل سي. خو دلته یوه خبره باید هېره نه کړو چې له دې ټولو خبرو سره سره د میرویس نیکه پاځون یوه کثرت ګرا (پلورالیسته) ځانګړنه درلوده ځکه د غلجي پښتنو تر څنګ د بلوڅو او هزاره وو په څېر نورو قومونو هم ګډون درلود.

په دې توګه د هوتکي دورې ځینې سیاسي اړخونه تر ځیرنې لاندې ونیول سول. د میرویس نیکه پاځون یو سیاسي انقلاب و چې د ده تر مړینې په یوه بڼه او تر هغه وروسته یې بنې څه نا څه تغیر وکړ، په ټولنه کې د میرویس نیکه مقبولتیا تر ډېره ځایه د هغه د شخصي نبوغ له برکته وه خو د واک د منل کېدنې دودیزو اړخونو هم ورسره مرسته وکړه، په دې دوره کې د اولسي ښکېنې په تېره بیا د پرمختیایي رغنیزو پروژو په اړه معلومات لږ دي، تر پاځون وروسته فیوډالیزم له منځه نه ځي، د میرویس نیکه فکر او تجربې په پښتني ټولنه کې د غوره سیاسي بصیرت نمونې دي، د میرویس نیکه پاځون یو بریالی پاځون و، چې آره موخه یې له پردیو څخه آزادي وه او پکښې د ډیموکراسۍ په څېر نظریه ډېره نه وه مطرح او بالاخره دا ویلای سو، چې هوتکي پاځون یو کثرت ګرا پاځون و.

**مأخذونه:**


۱. د اتلسم قرن په اوایلو کې د افغانستان د بیا آزادولو لپاره د میرویس مؤثر حرکت، علامه عبدالحی حبیبي، کندهار مجله، ۱۳۸۶ کال، لومړی ګڼه وری- غويي له عرفان مجلې ۱۳۴۷ کال، ۵ مې ګڼې ۸ او ۱۰ مخونو څخه په نقل.

۲. د هوتکي غورځنګ او هوتکي دولت لوړې او ځوړې، حبیب الله رفیع، کندهار مجله، ۱۳۸۶ کال، د وري- غويي ګڼه

۳. په کندهار کې هیواد پالي مبارزې، حبیب الله رفیع، کندهار د تاریخ په اوږدو کښې (د مقالو ټولګه)، ۱۳۸۴ کال.

۴. افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار، ۱۳۴۶، دولتي مطبعه، کابل.

۵. تاریخ ایران پس از اسلام، عباس اقبال اشتیاني، لومړی چاپ. ۱۳۸۶. تهران.

۶. پټه خزانه، محمد هوتک بن داؤد، څلورم چاپ، ۱۳۵۶، کابل.

۷. افغانستان قدیم و جدید. عبدالله ملک. ۲۰۰۷ م. لاهور

عبدالقیوم مشوانی
د افغانستان د علومو اکاډیمي

# د میرویس خان او ګرګین اړیکې

د ګرګین اصلي نوم "ختنګ" و. ګرګین له آره د ګرجستان اوسېدونکی و، کېدای شي افغانانو د ګرجي (د ګرجستان اوسېدونکی) کلمه په ګرګي اړولې او د (ین) د نسبتي روستاړي په ورنښلولو سره یې ترې "ګرګین" جوړ کړی وي. ډېر روایتونه شته دي، چې ګرګین عیسوي و، خو ځینو د زردښتي دین پیرو او ځینو نورو بیا رافضي بللی دئ.

ګرګین د صفوي شاه حسین په حکومت کې دنده درلوده. په ګرجستان کې یې د پاچا له فرمانه سر وغړاوه او د صفوي واکمنۍ پر ضد وجنګېد، ماتې وخوړه، بیا د صفوي دربار د دېوانبېګي (د پاچا د دربار د عدلي دېوان رئیس او د ګرګین وراره) خسروخان په منځګړتوب پاچا ته ننواتې ورغی، پاچا وبانښه او د "شاهنوازخان لقب" یې ورکړ. وایي، چې مسلمان شو، خو د مسلمانۍ او نه مسلمانۍ په اړه یې خبره لا سمه سپینه نه ده. په هر حال په ظاهره مسلمان شو.

په (۱۵۰۰ ز) کې په ما وراء النهر کې شیباني دولت په (۱۵۰۲ ز) کې په ایران کې صفوي دولت او په (۱۵۲۵ ز) کال کې په هندوستان کې بابري دولتونه را منځ ته شوي وو. دغه درې واړه نوي راټوکېدلي دولتونه او نوي پېښې د افغانستان په زیان وې، ځکه نو ټولو په افغانستان کې د یو مرکزي ځواکمن دولت د تشې په محسوسولو سره افغانستان ته د تېري لاسونه رااوږده کړل. که څه هم افغانستان له دیارلسمي زېږدي پېړۍ یا د چنګېزخان تر تاړاک وروسته مخ پر ځوړ و؛ خو د شپاړسمې زېږدي پېړۍ په پیل کې د دریو بهرنیو حکومتونو تر منځ عملاً ووېشل شو. له اباسینده تر کلاته د مغولوحکم چلېده، کندهار او هرات د صفویانو تر اغېز لاندې و، له هندوکش نه تر امو پوري سیمې یا د ځایي واکمنو او یا هم د ماوراء النهر د شیباني خانانو تر حکم لاندې وې. ( افغان هوتکي پاڅون ۱۵مخ)

همدا لاملونه وو، چې افغانستان ته د ټولویرغلګرو ګاونډیانو سترګې ټېغې راوتې وې. کله چې ګرګین په ګرجستان کې د صفوي دولت پر ضد پاڅون وکړ، نو د دغه اړو دوړ له امله د کندهار د بیا تر لاسه کولو لپاره د مغولي واکمن هیلې تاندې شوې، په همدې هیله یې یو استازی د صفوي شاه حسین دربار ته ولېږه. د مغولي ځواکمني امپراتورۍ له منګولو څخه د کندهار د ژغورلو لپاره صفوي پاچا په اندېښنه کې شو. صفوي پاچا ته یو تکړه او تجربه کار جنرال په کار و، نو تر غور و فکر وروسته دا خسنې د ګرګین په نامه راوخوت. ګرګین په دریو دلیلونو د دې دندې لپاره غوره شو:

۱. د ګرجستان پوځیان به له ګرګین سره کندهار ته ولاړ شي، نو ګرجستان به له فتنې او فساد څخه خلاص شي.
۲. دا چې ګرګین نوی مسلمان او د پاچا له خوا تازه بخښل شوی، ښایي تل

پاچا ته د خپل خدمت په ډاګه کولو او د هغه د خوشالولو هڅه وکړي.

۳. څرنګه چې ګرګین یو جګړه مار، توند خویه، ظالم، سخت زړی، خو همتناک جنرال دئ، نو هم به افغانان ارام وساتي او هم به کندهار د مغولو له خطره وژغوري.

د پورتنیو دلایلو او سیاستونو له امله د صفوي شاه حسین له خوا ګرګین د کندهار د بېګلربېګي په توګه وټاکل شو او د (۱۷۰۴ ز) کال په می کي له کرمانه راوخوځېد، تر اوو اونیو مزل وروسته د (۱۷۰۴ ز) کال په جون کي له شل زره کسیز پوځ سره کندهار ته راورسېد. (د کندهار پاڅون ۳۹ مخ)

دغه مهال په کندهار کي دولت خان سدوزی د ابدالي قبیلې رئیس او میرویس خان تر ټولو نفوذ لرونکي شخصیتونه وو، میرویس خان پسې د غلجیانو پنځوس زره کورنۍ ولاړي وې. د ګرګین په راتګ سره پر افغانانو له سیاسي او اقتصادي پلوه نور هم تېري زیات شول، نو د یو قومي مشر په توګه میرویس خان هم اړ و، چې د قوم خپاره واره ځواکونه سره یو موټی او پهرنۍ واکمني ختمه کړي. د ښار خلکو د هغه شریفانه او خیر غوښتونکي هلي ځلي او ملي نظریې محسوسي کړي وې او د خپل ښه شهرت او ملي شخصیت له امله یې په ابدالي قبیلې کي هم ډېر خواخوږي پیدا کړي وو. دغه مهال په کندهار کي اکثریت پښتانه ابدالیان وو، خو غلجیان هم ورسره پراته وو. غلجیان زیاتره د ګرماب ختیزې خواته او ابدالیان یې سوېلي خوا ته پراته وو.

د صفوي واکمنۍ رسمي او مذهبي سیاست په ټوله مانا یو مذهبي فاشیستي سیاست و، چې د رسمي مذهب تر څنګ یې د نورو مذهبي ډلو د موجودیت زغم نه درلود، ګرګین چې کندهار ته د بېګلربېګي په توګه راغی، سمدواره په دې لټه کي شو، چې د ابدالیانو او غلجیانو عنعنوي خپلواکي ختمه او د صفوي دربار په خوښه خپل حکومت پرې جاري کړي، ځکه نو ګرګین دوه عمده کارونه باید کړي وای:

یو د دولت خان کمزوري کول او بل د میرویس خان برمته کول، ځکه چې په کندهار کي تر ټولو نفوذ لرونکي قومي شخصیتونه وو. د لومړي موخې د تر سره کولو کولو لپاره یې میرویس خان ته د دوستۍ لاس وروغځاوه. بیا یې لږ وروسته د دولت خان سدوزي پر ضد د هغه د دوو ناپوهو سیالانو (عزت خان او اتل خان سدوزي) په مرسته په صفا ښار کي د دولت خان پر کلا برید وکړ، دولت خان او د هغه زوی نظرمحمد خان یې ووژل؛ خو د دولت خان دوه زامن (رستم خان او محمدزمان) له تورتمه په ګټې اخیستني سره وتښتېدل او ارغسان ته یې ځانونه ورسول. د ارغسان ابدالیان وسله وال او غچ اخیستني ته چمتو شول. ګرګین ووېرېد، نو روغه یې ورسره وکړه. رستم یې د ابدالي قبیلې د رئیس په توګه ومانه، محمدزمان یې له خطره د ځان ژغورني په نیت له ځان سره بوت خو بیا یې کرمان ته جلاوطن کړ.

څلور کاله وروسته ګرګین رستم خان دربار ته راوغوښت، لومړی یې بندي او بیا یې وواژه. همدارنګه یې پر نورو ابدالیانو هم ظلمونه او تېري پیل کړل، ځیني یې لیري پرتو دښتو ته وشړل او ځیني یې کرمان ته جلاوطن کړل. د هغو حاصل واله ځمکي یې د غلجیانو پر مشرانو ووېشلې او په دې توګه یې په قصدي ډول د افغاني قبیلو تر منځ د نفاق او دښمنۍ اور بل کړ.

د ابدالیانو تر ځپل کېدو وروسته غلجیان د یو لوی ټبر په توګه په کندهار کي پاته شول. په دوی کي تر ټولو مهم شخصیت د ښالم خان مشر زوی میرخان و، چې د

سلطان ملخي توخي لورنی لمسی او د پوپلزیو زوم و.

ګرګین د ابدالیانو تر ځپلو وروسته له میرویس خان سره دوستي پیل کړه. میرویس خان یې د ښار کلانتر او خپل مشاور وټاکه. ښایي په دې پلمه چې ګوندې دا پښتني ځواک هم په چل ول وځپي، خو میرویس خان هر څه په ځیر څارل او له ټولو پېښو یې ښه عبرت اخیست.

د یو مدبر قومي مشر او سیاستپوه په توګه یې د پوځي او سیاسي اوضاع له څارنې دا پایله تر لاسه کړه، چې اوسمهال د پوځي ځواک له لارې له ګرګین او صفوي دولت څخه خپلواکي تر لاسه کول ناشونی کار دئ، نو په ښکاره یې له دښمن سره د دوستۍ لاره خپله کړه، خو له ګرګین سره یې اوبه په پوکي څښلې.

ګرګین هم اوضاع په ځیر څارله او د میرویس خان له ورځ په ورځ زیاتېدونکي قوت څخه په وېره کې و، نو د چارې په لټه کې شو. د خدای کړه وو، په همدې وخت کې د کندهار ولسونه چې د ګرګین د ظلمونو له امله تر پزې راغلي وو، د ګرګین د بې فکرۍ، بې تمیزۍ، بې رحمۍ او غلط سیاست له امله نهیلي او له صفوي درباره یې مخ واوښت. له دې کړاوه د ځان خلاصي په لټه کې میرویس خان ته د مشورې لپاره ورغلل. تر مشورې وروسته میرویس خان صفوي شاه حسین ته یو لیک وکښښ، چې په هغه کې یې د ګرګین د ظلمونو او تېریو یادونه کړې وه. پر دغه لیک د میرویس خان په ګډون د ښار نورو مشرانو لاسلیکونه کړي وو. تمه دا وه چې صفوي دربار به د کندهار د ولس له ګرېوانه د ګرګین لاسونه لنډ کړي، خو صفوي فاسدي ادارې دغه شکایتونه وانه ورېدل. کله چې له لیک څخه خسروخان خبر شو، میرویس خان یې له کلانترۍ لیرې کړ او صفوي دربار ته یې د دښمن په توګه وروپېژاند. (د مسیحي سیلاني تاریخ ۵۰ مخ)

ګرګین صفوي دربار ته د بلنې په پلمه په غولوونکو او پستو خبرو میرویس خان په (۱۷۰۶ز ) کې اصفهان ته جلاوطن کړ. څو کسه یې له هغه سره وګومارل، چې په لاره کې میرویس خان وڅاري. هغوی ته یې یو مکتوب هم ورکړی و او په مکتوب کې یې دا یادونه کړې وه:

"د کندهار ارامي د دې سړي په بندیتوب پوري اړه لري". (هوتکیها ۲۷مخ)

دې کار د صفوي حکومت پر ضد د غلجیانو د قهر اور هم په لمبو کړ، په داسې حال کې چې ابدالیان لا پخوا د دولت خان په وژنې او د ابدالیانو په ځورونې د صفوي دولت او ګرګین پر ضد راپارېدلي وو.

میرویس خان په اصفهان کې ډېر ژر د خپلې ځیرکۍ او وړتیا له امله دربار ته لاره وموندله. د ګرګین په اړه په دربار کې هم دوې ډلې وې:

یوه د اعتمادالدولة ډله، چې د ګرګین مخالفه وه او بله د دېوانبېګي (خسرو خان) ډله، چې د ګرګین ملاتړ یې کاوه.

میرویس خان د خپلې ځیرکۍ او وړتیا په مرسته وکړای شول، چې پر دغو دواړو ډلو خپل اغېز وښندي. د چاپېریال د درک او د غونډې له غوښتنو سره سمې به یې خبرې کولې او نظر به یې ورکاوه. د صفوي دربار په هغې غونډې کې، چې د لومړي ځل لپاره میرویس خان ورغلی و او دېوانبېګي خسرو خان هم پکښې ناست و، میرویس خان داسې حکیمانه خبرې وکړې:

"دا سمه ده څه وخت، چې هندي مغولو پر کندهار د ګرګین د مقررۍ واورېدل، ما تر ټولو دمخه د هغه له قوت څخه کار واخیست او د ګرګین له اشارې پرته مې د کندهار په ساتنې کې هلې ځلې وکړې".

ورپسې يې ګرګين ته د وفادارۍ په اړه داسې څرګنده کړه:

"ګرګين خان هوښيار، مدبر، د روښانه فکر څښتن، رعيت پال او زړه ور شخص دئ. د پاچا رښتينی، اصيل، بشپړ نوکر او چارواکی دئ. نن ورځ چې د کندهار د مشر په توګه ټاکل شوی دئ، د هند پاچا د ده د پرتم او قهر و غضب له ويرې له کندهاره تمه پرې کړې ده. ځومره چې د کندهار د ابادېدو هيله وه له هغې څخه يې زيات اباد کړی دی".(د مسيحي سيلاني تاريخ ۵۲ مخ)

په دې وخت کې دېوانبېګي د درباريانو د خولو بندولو لپاره ګرګين داسې وغانده:

"ګرګين ډېر بې کاره سړی دئ. هغه تر اوسه پوه نه شو، چې ميرويس د هغه ملګری او مرستيال دئ، د ده سره يې ډېر ظالمانه چلند کړی دئ".

ورپسې د ګرګين د مخالفې ډلې مشر اعتمادالدولة هم پر ګرګين کلکې نيوکې وکړې او غونډه ختمه شوه.

بله ورځ په هغې غونډې کې، چې اعتمادالدولة پخپل استوګنځي کې جوړه کړې وه او ميرويس خان هم ورته بلل شوی و، اعتمادالدولة له ميرويس خان څخه وپوښتل:

"ستا په اړه له کندهاره مکتوب رارسېدلی، نو تا د دې ور ګنم، چې ته پخپله هغه څه ووايې چې هلته دې ليدلي دي. تاسې بايد د هغه تعصب او ظلمونو له امله خبرې ونه کړئ، چې ګرګين دربانډې کړي، بلکې د حقيقت له مخې خبرې وکړئ. زه يقين لرم تاسې داسې کس نه واست او نه ياست، چې ګرګين ليکلي دي".

ميرويس خان په دې غونډه کې دا غوره وګڼله، چې له حقيقته پرده پورته کړي، د زړه راز ووايي او خپلې ملي موخې ته د رسېدو لاره اواره کړي، نو ويې ويل:

"څرنګه چې تاسې له ما نه رښتيا پوښتلي او زه چې يو افغان يم هم بايد رښتيا ووايم، نو دا دې وايم يې: که چېرته ګرګين لږ نور هم په کندهار کې پاته شي، نو د کندهار ټپونه به دومره ناسور او هډونه به يې دومره يو له بله جلا شي، چې رغېدا او راغونډېدا به يې ناشونې وي، ځکه تر اوسه هغه په دې نه دئ بريالی شوی، چې خپل عسکر د حيا او پت تر اداري او دسپلين لاندې راولي. هغه وګړي هم د ګرګين له خوا سخت ځورول شوي، چې هيڅ مخالفت يې نه دئ کړی، مالونه يې ورته لوټلي او د هغو اولادونه يې له خپلو عسکرو سره ګرجستان ته لېږلي دي. ګرګين هڅه کوله چې د خپلو عسکرو د مزو چړچو اسباب چمتو کړي، خو ما پرېنښود. ښه! کله چې ډېر عسکر پر ځان راټول او ډېري پيسې جمع کړي ايا د دې خطر او وېره به نه وي چې د هند له پاچا سره يو ځای شي؟! او که له لاسه يې کېږي، نو هغه به صرفه وکړي؟! څه شی به ګرګين له دې ترونه پر شا کړي؟ ولې پاچا ونه غوښتل چې له خپله دينه کار پوه او ور وزيران د دې پاچاهي کارونو د ترسره کولولپاره وټاکي، چې يو نوی مسلمان کس يې وټاکه! تر لمر روښانه ده که چېرته دا سړی لږه موقع ومومي؛ نو هرومرو به د پاچاهۍ د ويجاړۍ لاملونه رامنځته کړي".(هوتکيها ۳۴مخ)

لنډه دا، چې ميرويس خان د اصفهان په دربار کې پر دې بريالی شو، چې عام ذهنيت د ګرګين خلاف کړي. ميرويس خان بيا له درباره د حج د فريضې د ادا کولو اجازه وغوښته او حج ته لاړ. هلته يې هم د خپل ولس او هېواد د خپلواکۍ هوډونه پالل. له الله ﷻ يې خپلواکي او د مکې معظمې له عالمانو يې د خپل ملت د تسلۍ لپاره د ګرګين د له منځه وړلو فتوا غوښتله. کله چې تر حج ادا کولو او فتوا اخيستلو وروسته بېرته اصفهان ته راستون شو، د صفوي دربار له خوا يو ځل بيا په ډېر درنښت د کندهار د کلانتر په توګه

له یو سپارښتي مکتوب سره کندهار ته روان شو. له همدې ځایه یې د خپلواکۍ غوښتنې سمندر په څپو و. د لارې په اوږدو کې یې له ټولوافغاني قبیلوسره د لیدنو کتنو پر مهال په دې اړه د هغوی د ملاتړ ډاډ تر لاسه کاوه.

میرویس خان په ډېر درنښت په (۱۷۰۹ ز) کې کندهار ته راورسېد. په کندهار کې د میرویس خان ډېر تود هرکلی وشو. که څه هم ګرګین په ځرګنده د ده په هرکلي کې ګډون وکړ؛ خو په زړه کې یې د کینې دېګ له ډېره تاوه خوټېده او تل د غچ اخیستنې موقع ته سترګې پر لاره و، په ځانګړي ډول هغه وخت چې د اصفهان د دربار ګواښنې او سپارښتنې یې ولوستې.

ګرګین هر څه د سر په سترګو لیدل، د میرویس له لیدنو کتنو څخه بې خبره نه و. میرویس خان له ګرګین او د هغه له وراره دېوانبیګې سره اړیکې ټینګې کړې، په ځرګنده یې له دوی سره ښه پالل؛ خو په پټه د ابدالیانو او غلجیانو له مشرانو سره د خپلواکۍ د پاڅون په طرح بوخت و. لومړۍ جرګه یې د کندهار د لوېدیځ په شپږ میلۍ (کوکران) کې وکړه، ورځ په ورځ په ولس کې د میرویس خان نفوذ زیاتېده. ګرګین میرویس خان ته د ورنژدې کېدو او د هغه له ځواکه د ګټې اخیستنې په نیت د میرویس خان لور خپل زوی ته وغوښته. (میرویس نیکه ۹۱ مخ).

میرویس خان دا خپلوي د ځان او قوم لپاره سپکاوی ګاڼه؛ نو له قومي مشرانو سره یې دا خبره شریکه کړه. د ملي موخو د تر لاسه کولو لپاره د یوې خدمتګارې د خپلې خوښې په تیارېدو یې هغه او یا یې بله وینځه د مشرانو په مشوره د خپلې لور په نامه د ګرګین حرم ته ورولېږله (دغه مهال به له نړیوالو مارکېټونو څخه نننی افغانستان او شا وخوا سیمې ته وینځې او مریان د پلورلو لپاره راوستل کېدل، چې لا تر اوسه هم د بلوچستان ځینې نوابان وینځې او مریان لري، اختلاف دولتین ایران و افغانستان در مورد رود "هیرمند"۲۴مخ). له دې سره جوخت یې خپلې هلې ځلې چټکې کړې. بله جرګه یې د کندهار د شمال لوېدیځ په (۲۰) میلۍ (مانجه) نومي ځای کې وکړه. په دې جرګې کې یې د مکې معظمې د عالمانو فتوا هم مشرانو ته د پاڅون د جواز په نیت وروښودله.

د دې جرګې ځینې مشران دا وو:

سیدالخان ناصر، بابوجان بابي، بهادرخان، پیرمحمد میاجي هوتک، یوسف خان هوتک، عزیزخان نورزی، ګل خان بابړ، نورخان برېڅ، نصروخان الکوزی، یحیی خان، محمدخان، یونس خان کاکړ او نور.

د جرګې ګډونوالو پرېکړه او په قرآن لوړه وکړه، چې ګرګین او د هغه پوځیان به له منځه وړي او یو خپلواک حکومت به جوړوي. جرګې د ټولو قبایلي مشرانو لپاره دندې هم وټاکلې او په دې ډول د یو ملي پاڅون لپاره هر ډول چمتوالی بشپړ شو. په دې جرګې کې د افغان ملت د ټولو قبیلو استازیتوب ځرګند و او د ډیموکراسۍ د یوې ممثلې جرګې په توګه یې په متحدانه ډول میرویس خان خپل مشر وټاکه.

د دې لپاره، چې د ګرګین ځواکونه یې بې پامه او خپاره کړي وي، داسې پرېکړه وشوه، چې د کندهار په څنډوکې به ځینې سیمې د مالیاتو له ورکړې انکار وکړي، په دې ډول به د ګرګین پوځونه په انکار کوونکو پسې ورخپاره او مرکزي پوځ به یې کمزوری شي، نو په دې وخت کې به پرې یو ناڅاپه برید وشي او ګرګین به سره له پوځه له منځه یوسي.

د ترین اباد بلوڅانو او د ارغسان اوسېدونکو د مالیاتو له ورکړې انکار وکړ. هغه و، چې ګرګین له درېو زرو عسکرو سره د هغوی په ټکولو پسې ورووت. میر ویس خان

ته يې هم امر وکړ چې د خپلو قومي ځواکونو سره يې مرستې ته ورشي.

میرویس خان پټ د بلوڅو مشرانو ته خبر ورکړ او هغه يې د غفلت له خوبه راویښ کړل. خبر يې ورته واستاوه : "دا هم هغه ورځ ده، چې موږ او تاسې ټاکلې وه او تاسې قول راسره کړی و".

میرویس خان له قومي ځواکونو سره ځان ارغسان ته ورساوه، له پلان سره سم يې ګرګين د ارغسان په "ده شيخ" کې د شپې يوه باغ ته راوباله، په باغ کې يې ورته ترتيب نيولی و. ټولو پښتنو مشرانو د ګرګين ښه تود هرکلی وکړ؛ نيمه شپه يې توري له تېکو را وکښلې او ګرګين يې له خپل ټول پوځ سره په خپله جزا ورساوه، له سرجان ملکم، افغان سيدجمال الدين او ميليسون پرته نورو مؤرخينو بيا دغه پېښه بل ډول ثبت کړې ده:

کروسينسکي د مسيحي سيلاني تاريخ ليکوال ليکي :

"ګرګين د ګرجيانو سره سپور راووت؛ تر څو بلوڅ تنبيه کړي کله چې ګرګين له ښاره بېرون راووت بې پروا په ميدان کې ولاړ و، چې سپاره افغانان د ده سلام ته راغلل کله، چې رانژدې شول د افغانانو د انتقام بحر په څپو راغی او... فرعوني کرګين خان د بلا په توپان کې غرق شو". (د مسيحي سيلاني تاريخ ۶۱مخ)

د افغانستان در مسير تاريخ ليکوال غلام محمد غبار هم دا پېښه په مجهول ډول ليکي:

"در چنين وقتی اورا در منزل "ده شيخ ارغسان" در باغی پذيره کردند ودر نيم شب ميرويس با مردان انتقامجوی شمشير در نهادند، اين کشتار چنين بود که حتی يکنفر از دشمن هم زنده نجست". (افغانستان در مسير تاريخ ۳۲۰مخ).

د ميرويس خان مهال ته نږدې ليکوال افضل خان ختک په تاريخ مرصع کې ليکي:

"... نو ميرويس"شهنوازخان" ته ځواب واستوه چې اوس ته هم راوځه. لښکر د شهنوازخان اکثر په مهم د بلوڅو لاړ و، د لږ جميعت سره راووت. شهنوازخان يې مړ کړ هله يې په قندهار وکړه څه لږ. ډېر غلجي په هومره هله کې پرېوت نور يې قندهار واخيست". (تاريخ مرصع ۴۴۴مخ)

په هر ډول يې، چې هر چېرته او په هر ډول وژلی وي، پر خپله خاوره د يو يرغلګر، غاصب او ظالم د وژنې او د خپلواکۍ تر لاسه کولو لپاره په افغاني دود کې کوم ځانګړی ځای او وخت نه ټاکل کېږي، ګرګين يې له ايرانه مېلمستيا ته نه و را غوښتی؛ بلکې د يو ښکېلاکګر په ډول يې د افغانانو په هېواد کې ډېره لګولې وه؛ نو دا د افغانانو طبيعي حق و او د خپل مټ په ځواک يې خپل حق تر لاسه کړ.

د دې پېښې په نېټه کې هم د مؤرخينو تر منځ اختلاف شته؛ لکه شېرمحمد په "تاريخ خورشيد جهان" کې د ۱۱۲۰ سپوږميز د صفري مياشت، سلطان محمد په "تاريخ سلطاني" کې د ۱۱۲۱ سپوږميز د صفري مياشت، نواب صمصام الدولة په "مآثرالامراء" کې ۱۱۱۹ سپوږميز، ميليسون د "افغانستان تاريخ" کې ۱۱۲۱، نورالله لاروي په "زندګانی نادرشاه" کې ۱۱۲۱سپوږميز او په "ترکتازان هند" کې يې ۱۱۲۰سپوږميز ليکلی دئ.

خو "پټه خزانه " چې تر ټولو باوري سند دئ (ځکه چې ليکوال يې د هماغه پېر دئ) د دې پېښې نېټه د ۱۱۱۹سپوږميز د ذيقعدې ۲۹مه ښودلې ده اود رېدي خان مومند د "محمودنامې" بيتونه هم دغه ګواهي کوي، هغه وايي:

کال و يو سل نونس او زر په شمار
خلاص شو له ظلمه د ګرګين قندهار

افغانستان در مسير تاريخ هم د پټې

خزانې د مؤلف او د ربدي خان مومند د خبري پخلی کوي؛ یاني ۱۷۰۹زېږدی کال ښیي، چې له ۱۱۱۹سپوږمیز سره سمون خوري. همدارنګه "لاکهارت" د هغه مهال له مخکنیو او وروستنیو پېښو سره د سمون ورکولو له مخې د دې پېښې نېټه د (۱۷۰۹ ز) کال اپریل ښودلې دئ. خافي خان هم د هوتکي پاڅون نېټه (۱۱۱۹س) ښودلې ده، چې له (۱۷۰۹ ز) سره سمون خوري؛ نو دا د هوتکي شاهنشاهۍ د تاسیس نېټه هم بللای شو.

د ګرګین تر وژلو وروسته د کندهار ښار نیول څه اسان کار نه و، ځکه د ښار دننه د ګرجیانو ډېر عسکر پراته وو او د کلا پر برجونو او ورونو یې توپونه لګولي وو. که تدبیر نه وای هغوی کولای شول، چې د میروس خان لښکر او د ښار خلکو ته دروند زیان ور واړوي. میرویس خان پخپله د ګرګین جامې واغوستې او ملګرو یې د ګرګین د ملګرو او ساتندویانو. درې زره کسان یې تر ښار دباندې پرېښودل، نورو ماښام مهال ښار ته ځانونه ورسول. ګرجي پېره دارانو په دې ګومان، چې د ګرګین سپرلي ده او ورپسې هم ګرجیان دي، د خپلواکۍ اتلان یې پرېښودل، چې ښارته ننوځي. ننګیالو له ننوتو سره سم د ورۀ او کلا پر ساتندویانو یرغل وکړ. شاوخوا پټ کسان هم پر ښار راوجوړېدل په ښار کي پاته ګرجیان یې هم تارومار کړل. په دې ډول د خپلواکۍ توغ هسک شو، میرویس خان د شکرانې سجده ادا کړه. سبا ته یې ولس ته یوه فصیحه او بلیغه وینا وکړه. خپاره واره پښتانه یې خبر او راوبلل او ټول یې هر ډول سرښندنې ته د زړه له تله چمتو کړل.(میرویس نیکه ۱۱۲مخ)

د ګرګین تر وژلو څلور ورځې وروسته سهار مهال په شنه خړه کي افغاني څارندویانو یوه عسکري ډله ولیدله، چې د ښار پر لور راروانه ده، دا هغه (۶۰۰) ګرجي عسکر وو، چې د بلوڅو او کاکړو د ټکولو او مالیې راغونډولو لپاره تللي وو. ډېرې ولجې یې د پښتنو له لوټلو تر لاسه کړې او د یو کال نغدي مالیه هم ورسره وه. د ګرګین له مړینې ناخبره ښار ته راروان وو. کله چې د ټوپکو او توپونو تر خولو رالاندې وتل، نو د ګولیو اور پرې بل شو. دغې جنګیالۍ ډلې سخت مقاومت وکړ، خو ماتې یې وخوړه، ځیني یې مړه او ځیني یې د ګرشک او هلمند په لور وتښتېدل او مخ په مخه یې د ګرګین د مړینې خبر پارسیانو ته ورساوه.(میرویس نیکه ۱۱۳مخ)

د پارس صفوي واکمنۍ د جاني خان په نامه یو کس استازی د اوضاع د معلومولو لپاره کندهار ته راولېږه. دې کس دا پیغام درلود، چې که د پا رس د عسکرو ډېره کېدل په کندهار کي ومنل شي، نو صفوي پاچا به د ګرګین د مړینې له غچه تېر شي. میرویس خان څه وخت نوموړی استازی په خبرو بوخت وساته خو کله، چې د استازي د بېرته تګ له نیته خبر شو، نو هغه یې بندي کړ. ورپسې صفوي دربار د هرات والي محمدخان ته دا دنده وسپارله. هغه هم یو استازی کندهار ته را ولېږه. دغه استازي هم کټ مټ د تېر استازي نظریات تکرارول. میرویس خان د هرات د والي محمدخان په درناوي، چې د هغه د حج د سفر ملګری و، د دغه استازي درناوی وکړ، خو له ملي ګټو نه شو ورتېرېدای، نو د هغه سړی یې هم له ځان سره وساته.

د هرات والي چې په اوضاع پوه شو، د جنګ په نیت را روان شو. میرویس خان له (۵۰۰۰) زرو عسکرو سره مقابلې ته ورووت. د یوه جنګ په پایله کي صفوي ځواکونو ماتې وخوړه.

په دې ترتیب د اتلسو میاشتو په اوږدو کې څلور لوی بریدونه پر کندهار وشول، خو هر ځل یې ماتې وخوړې. بیا صفوي دربار د

خسروخان په مشرۍ او د عباس قلي بېګ په ملګرتیا (۳۰۲۰۰) کسیز پوځ (ښاغلي سیستاني د خسرو پوځیان ۲۵زره لیکلي دي، د کندهار پاڅون ۶۰مخ) پر کندهار د برید لپاره راواستاوه. خسروخان، چې کله له کرمانه راتېرېده، نو د دولت خان سدوزي زوی (محمدزمان) چې هلته یې د یرغمل په توګه ساتلی و، هغه یې د ابدالیو د رئیس په توګه وټاکه او له ځان سره یې راروان کړ، چې ګوندي په دې ډول یوځل بیا د ابدالیانو او غلجیانو تر منځ د نفاق اور بل کړي.

په کندهار کې لا دمخه د دولت خان له خوا ملتان ته جلاوطن شوی د حیات سلطان زوی "عبدالله خان" راغلی او د ابدالي قبیلې د رئیس په توګه په کندهار کې موجود و، نو محمدزمان اړ و چې له خپلو ملګرو سره د خسروخان او صفوي واکمنۍ ملاتړ وکړي، خو ملي اشخاص ملي ګټې پر ځانګړو ګټو لومړی ګڼي. محمدزمان خان هم له خپل قبیلوي رقیب عبدالله خان سره د ملي ګټو لپاره یو ځای شو. (افغانستان در مسیر تاریخ ۳۲۲مخ).

خسروخان د نورو په پرتله لږ څه زیات مقاومت وکړ، ان کندهار یې هم کلابند کړ. میرویس خان، چې د جنګي تکتیک له مخې ځان له کندهاره د باندي ځای پر ځای کړی و، له خپلو شپاړسو زرو شاه زلمیو سره یې پر خسروخان یو چټک او مرګوني برید وکړ. خسروخان یې له دواړو خواو تر کلک برید لاندي راوست او د ګرګین غوندي یې د۱۱۲۳ د روژې پر ۲۸ مه په سزا ورساوه. له دې جنګه هم ډېر لږ کسان په تېښته بریالي شول. په دې ډول په (۱۷۱۲ز) کې په بشپړ ډول هوتکي واکمني پخپلو پښو ودرېده. که څه هم په (۱۷۱۳ز) کې د محمدزمان یا رستم خان شاملو په نامه د یوه کس په مشرۍ یو بل لښکر د کندهار پر لور راوخوځېد، خو کندهار ته لا نه و رارسېدلی، چې په لاره کې له منځه یووړل شو.

تر دې وروسته هوتکي واکمنۍ په خپلواکه توګه د هېواد د چارو په سمبالولو پیل وکړ او دومره بر لاسې شوله، چې تر پارسه یې خپلي برید پولي ورسولې او په دې ډول د میرویس خان او ګرګین اړیکي پای ته ورسېدې.

میرویس خان نیکه په ۱۱۲۶ هـ کې له جګړو څخه وزګار شو او یو کال وروسته د ۱۱۲۷هـ د ذیحجې پر ۲۸ مه یې له دې نړۍ څخه سترګي پټې کړې.

پایله:

د مشرۍ لپاره یو ملي مشر بایدلاندینۍ ځانګړني ولري:

۱. د ملت له منځه او په صداقت د ملت او هېواد د خدمت لپاره راوتلی وي.
۲. سیاستونه یې د ملت له ګټو اوکړني یې د ملت له ګروهي سره په ټکر کې نه وي او ځانګړي ګټې تر ملي ګټو ځار کړي.
۳. د نړۍ او لږ تر لږه د خپلي سیمي په سیاستونواو د خپل ولس په غوښتنو خبر وي.
۴. وخت پېژندونکی، ځای پېژندونکی او کار پېژندونکی وي.
۵. د هېواد ټولو اتباعو ته د هغوی د وړتیا او دیانت په پام کې نیولو سره په یوه سترګه وګوري.

ماخذونه:

۱. بېنوا، عبدالروف ، میر ویس نیکه، سریزه او لمنلیکونه محمد معصوم هوتک، د افغانستان د کولتوري ودي ټولنه- جرمني، دوهم چاپ ۱۳۸۴.

۲. ت- ی کروسینسکي، د مسیحي سیلاني تاریخ، پښتو ژباړه وجیه الله شپون، د افغانستان د کولتوري ودي ټولنه- جرمني، چاپ ۱۳۸۴.
۳. سیستانی، محمداعظم، د کندهار پاڅون او د صفوي دولت ړنګېدل، ژباړن صالح محمد صالح، د افغانستان د کولتوري ودي ټولنه- جرمني، چاپ ۱۳۸۴.
۴. بېنوا، عبدالروف، هوتکی ها، موسسه انتشارات الازهر، پېښور، ۱۳۷۹.
۵. غبار، میرغلام محمد، افغانستان در مسیر تاریخ، انتشارات جمهوری، ۱۳۶۶.
٦. فرهنګ، میرمحمدصدیق، افغانستان در پنج قرن اخیر، جلد اول قسمت اول.
۷. رفیع، حبیب الله، دافغانستان لنډکی تاریخ، د اریک ګرځنده کتابتون، ۱۳۷۸.
۸. و، منیب، جریانات تاریخی افغانستان، دانش کتابتون پېښور، لړم ۱۳۷۹.
۹. خټک، افضل خان ، تاریخ مرصع ، مقابله تصحیح او ټولونه دوست محمد خان کامل مومند، یو نیورسټي بک ایجنسي، پېښور، ۲۰۰۶می.
۱۰. فخاري، غلام رضا، اختلاف دولتین ایران وافغانستان در مورد آب "هیرمند" دفتر مطالعات سیاسی وبین المللی، مؤسسه چاپ وانتشارات وزارت امور خارجه ایران، ۱۳۷۱ل.



د (۳۴) مخ پاته

**مأخذونه:**

۱. د خپلواکۍ لمر ځرک، امان الله هوتک، ۱۳۶۸ش.
۲. حیات افغاني، محمد حیات خان، ژباړونکي: طالبي او ظریفي، ۱۳۷۰ ش.
۳. پټه خزانه، څلورم چاپ، د زلمي هیوادمل په زیار، کابل پوهنتون، ۱۳۵۷ش.
۴. سل پګړۍ یو پوړنی، محمدمعصوم هوتک، ۱۳۸۴ش.
۵. کندهار د تاریخ په اوږدو کې، د مقالو ټولګه، ۱۳۸۴ش.
٦. ژبپالنه، لومړی ټوک، حبیب الله رفیع، د افغانستان د علومو اکاډیمي، ۱۳٦۱ ش.
۷. میرویس نیکه، عبدالرؤف بېنوا، سریزه او لمن لیکونه: محمدمعصوم هوتک، ۱۳۸۴ش.
۸. هوتکیان، استاد بېنوا، ژباړن: محمدیونس مراد، ۱۳۸۰ش.
۹. احمدشاهي کندهار، محمدمعصوم هوتک، ۱۳۸٦ش.
۱۰. جغرافیایي قاموس، دریم ټوک، د اریانا دائرة المعارف ټولنه، ۱۳۳۸ش.
۱۱. د افغانستان لنډ تاریخ، علامه حبیبي، ژباړن: استاد بېنوا، ۱۳۵٦ش.
۱۲. جرګه مجله، لسم کال، لومړۍ ګڼه، ۱۳۷۰ش.
۱۳. شمشاد مجله، دوهمه ګڼه، ۱۳۷۵ش.
۱۴. د کندهار پاڅون او د ایران د صفوي دولت ړنګېده، سیستاني، ژباړن: صالح، ۱۳۸۴ش.
۱۵. هرات، پښتانه او ستره لوبه، عبدالباري جهاني، ۱۳۸۰ش.
۱٦. د مسیحي سیلاني تاریخ، کروسینسکي، ژباړن: وجیه الله شپون، ۱۳۸۴ش.



# هنر او ادب

چلوونکی
طه
بهیر

احمد صمیم

## د پسرلي میاشت

د یادا ښت ډېوه سوه بله
د قلم پتنګ خوځېږي
ښایي زړې د سبا وي
چې د غم تیاره تو لېږي

د مرغانو د ښکو
د جنبش وخت دئ راغلی
رهنورده میاشت روانه
بیا هر سیند مستي ته غلی

د افق پر لمن باندي
چک چکې مښتي ستوري
چو کیداره سپوږمۍ وینه
د کندو له غرفي ګوري

زمرو د غرو له کوه قافه
شاپېرۍ سپوږمۍ راوزي
دروازې د تاریکیو
په سپین مخ باندي پرانیزي

د شغلو په وربښم پټه
سپین کمیسې ناوکۍ ده
د مشرق پر بام ولاړه
د نیلي دریاب هېلۍ ده

محمدهارون خپل/لندن

## ستا په هجر

ستا په هجر مي له سترګو خونبار راغی
لکه پوځ د غلیم پټ په یلغار راغی

څو یې وس رسي پر هیڅ یې صرفه نسته
خړ لیوه مي بیا رمې ته په ښکار راغی

چې یې وکوت شین چمن ګلګون په وینو
مست بُلبل له ګلستان په چغار راغی
چې فتنو د غمازانو لار سپره کړه
هر پردی جِن و بلا په تلوار راغی
په زرګونو جنازو یې زړه سوړ نه کړ
رقیبانو ته د وینو خمار راغی
د اشنا به څه احوال وي لویه ربه؟
بیا رویبار په تبغ ویشتلی افکار راغی
اوس به څه خاوري، ایرې پر سر شیندمه
چې ګُلشن ته مي لښکر د اشرار راغی
خدایه شنې ددوزي وختې له زړه مي
چې له مځکي او اسمانه انګار راغی

د نصیب کاتب مي برخه کي غم کښلی
چې سبا بېګاه مي کور ته ناتار راغی

د مېړو په دود چاره ګوره هارونه
څه به دار کړې چې وطن ته ښامار راغی

زینب سالک/کابل

## غزل

ته زما د زړه درزا د سترګو اوښکه
ارزښتمن راته د خپلي ساه په څېر یې
لالهاند زړه مي احساس د کرارۍ کړي
د قبولي سحرنۍ دعا په څېر یې
تلوسه مي د ژوندون ایله پوره سوه
چي زما د لېونۍ سودا په څېر یې
نوی شان نوې بانه نوې ادا کړې
دروغجنه د ورې رښتیا په څېر یې
مخاطبه دي یم زه ګورې هوا ته
ښایسته دې د همدې ادا په څېر یې

فدامحمد نومیر

## هلمندته

اې د کـــروړ قهري توپانه
د شهاب د غور ځنګ توغه
د غـــیاث د توري تیـــکه
اې د سـیف بهانده مسـته
د میرویس د شبخون ننګه
د احـمد د سـوبو بریښه
د محـمود د یون ملګرې
د اشـرف د لـنګۍ جوغه
د سـیدال شـنې لـــېونیه
د ایوب د مـیوند سـپوره
د مـلالي سـور تیـکریه
تورپیـــکی په وینو رنګه
اې د بست ځلانده ستورې
د نومـــیر د زړګي ســـره
د تـــاریخ ویـــاړلې روده
کارنامي یادي کـــړه تېري
مست د هـیلو ډک هلمنده
مـــه وچـــېږه مه وډرېږه
توپاني شـــه وبهـــېږه

عادل اڅکزی/ چمن

## غزل

چي ښکلی نوم دي ولیکم پر پاڼه
بیا یې په اوښکو ومینځم پر پاڼه

یو څو زاړه او مینه ناک یادونه
د زړه په کور کي تل ساتم پر پاڼه

د نالیدلي یار د هجر په نوم
خیالي تصویر نن جوړوم پر پاڼه

په الهامي غوندي یو کیف کي کله
د ښایستونو ښار ته ځم پر پاڼه

له خپلي میني سره سم عادله
د راز خبري ورلېږم پر پاڼه

سمیرا کوچۍ

## غزل

ته خو وایې سم را ګورې خو ادا ور سره نه وي
زه به دواړي سترګي داغ کړم چي حیا ور سره نه وي

زړه مي غواړي چي قران غوندي یې زړه ته را نژدې کړم
څوک چي لیک غوندي رغېږي او ریا ور سره نه وي
نه پوهېږم لویه خدایه د چا سترګي را پسې سوې
اختر راسي پر دې سیمه خو خندا ور سره نه وي
دلته هر ستوری د شپې د تن له پاسه یو پرهر وي
دلته هره ورځ چي لمر ختېږي رڼا ور سره نه وي
اوښ یې نه رسي لاسونه زما خواره واره اوربل ته
باد چي راسي ستا له لوري لکه ساه ور سره نه وي

تا چي وچي کړې خاونده د کوچۍ د سترګو اوښکي
اوس چي څوک سندره وایي نو ژړا ور سره نه وي

حیات الله رفیقي

# د داود خان هوتک او د ده د کورنۍ

## ادبي ښېګڼې او خصوصیات د پټې خزانې په استناد

دا چې د پښتون ستر ټبر او د دوی خوږه ژبه (پښتو) د اریایي ژبو په کتار کې هغه ژبه بلل سوېده، چې د ختیځو او لوېدیځو اریایي ژبو د پوهېږيو تر منځ د پیوند او ارتباط یوه کړۍ ده.

دې ژبې د تاریخ په اوږدو کې خپل موجودیت د یوې ژوندۍ او لرغوني اریایي ژبې په څېر تر ننه پورې ساتلی او تر موږه یې ځان را رسولی دئ، د نړۍ د بلې هرې ژبې په څېر یې ژبني اصول او قوانین د یوه ژوندي ټبر د ژبې په توګه لرلي او ساتلي دي.

که موږ د اریایي ژبو زوړ تاریخ راوسپړو د دې ژبې د اریایي توب ډېرې بېلګې به په ډېرو زړو آثارو او کتابو کې ووینو، لکه د اریائیانو د مذهبي سرودونو په کتابو، ډېرلیکونو، مکشوفه آثارو، د هیواد او تر هیواد دباندې د وتلو پوهانو په څېړنو، کتابونو او نظریاتو کې.

که څه هم د دې ټولو ثابتو څېړنو او اسنادو سره سره یو شمېر د هیواد په دننه کې او هم تر هیواد دباندې داسې متعصبه، سیاسي او فاشستي کړۍ سته چې د دې ژبې د اریاییتوب او زړښت په اړوند یو لړ پوچ او د غرضه ډک تبلیغات کوي خو لله الحمد زموږ د عالمانو او لیکوالانو له خوا څخه عالمانه او تاریخي جوابونه ورکړل سوي دي.

په هر صورت دا چې د موضوع څخه لیرې ولاړ نه سم راځم و خپل اصلي مطلب ته.

درنو پوهانو، لیکوالانو، خوندو او مشرانو!

زموږ ګران هیواد تاریخ ته که وګورو، د دې ویاړمن هیواد د غیرتمن او اتل ولس په منځ کې ډېر شمله ور اتل سړي د ژوند په هره برخه کې لکه د هیواد پالني، هیواد ساتني، مېړاني، علم، پوهې، کلتور، ادب، تاریخ، سیاست او نورو کې راستر سوي دي او دا لړۍ همداسې روانه ده او وي به، خو د دې هیواد ډېر لرغوني د علم، پوهې، قلم او ادب خاوندان لا اوس هم نه دي پېژندل سوي، چې هغه د تاریخ په اوږدو کې د ځلاندو مرغلرو په څېر د نسیان تر ایرو لاندې پټ پراته دي، خو د ښه مرغه ځیني بیا د ورانکنو ستورو په څېر اوس هم د علم او ادب پر روڼ هسک باندې ځلا کوي، چې د خپلې ژبې، فرهنګ، ادب، تاریخ، علم او پوهې په لار کې یې نه هېرېدونکې خدمتونه کړي دي، چې د بېلګې په توګه د څو لرغونو اتلانو یادونه کوم، لکه:

لومړی د پښتو ژبې د (تذکرة الاولیاء) د کتاب مؤلف ارواښاد سلیمان ماکو.

دوهم ستر واکمن اتل او شاعر جهان پهلوان امیر کروړ، چې په کال ۱۳۹ هـ کې یې د غور په مندېش کې د توري او قلم ازانګې خپرې کړې.

د همدې لړۍ په عالمانو کې د تصوف او عرفان خاوندان، ادیبان او شاعران هم د شیخ متي رحمه الله په څېر د یادولو وړ بولم.

لنډه دا چې زموږ د هیواد په هر ګوټ کې همداسې د علم او عرفان شخصیتونه ډېر تېر سوي دي، د تاریخ په هره دوره کې را هسک سوي دي، که موږ د هوتکو دورې ته نظر واچوو، هلته هم د علم او فضل خاوندان کم نه وه، چې د دې ادب پاله دورې د عالمانو، پوهانو، لیکوالانو، شاعرانو او سترو جنګي سپاسالارانو د پوړیو یوه ستره کړۍ وه، چې د دې جملې څخه هغه ستر شاعر، ادیب او د ستر ژغورونکي میرویس خان د لښکرو د زړه ور سپه سالار نوم راوړم. یعني د داود خان هوتک د پټې خزانې د مؤلف پلار او د خدای بخښلي قادر خان هوتک زوی چې په کال ۱۰۲۹ کي دنیا ته راغلی و او په ۱۱۳۶ کي وفات سوی دئ او په کوکران کي د هوتکو په درنه هدیره کي ښخ دئ، داود خان علاوه پر دې چې د پښتو ژبي وتلی شاعر، لیکوال او وتلي ادیب و، د هیواد ساتني د لاري زړه ور سپاهي هم و، داود خان هوتک د هیواد د ستر ژغورونکي حاجي میرویس خان نیکه سره د هیواد د خپلواکۍ اخیستلو په ټولو مجاهدو کي ملګری و، کوم وخت چې د پارس حکومت یو لوی لښکر د یرغل په نیت د خسروخان په مشرۍ کندهار ته راولېږی نو ملي قاید میرویس نیکه د خپلو لښکرو سپه سالار داود خان هوتک وټاکه، داود خان هوتک په ډېره مېړانه د پارس و دغه یوولس زره کسیز پوځ ته په فراه کي سخته ماته ورکړه.

داودخان هوتک د توري سره د علم، ادب او شعر په برخه کي هم پوره وړتیا درلوده، د پټې خزانې د روایت پر اساس دی د خپل وخت د ناظمانو، ادیبانو، شاعرانو او فصحاوو په منځ کي د ښه نامه خاوند و. داود خان هوتک یوه موده د کندهار څخه دباندي هم د کسي په غره، پېښور او نورو ځایونو کي ژوند تېر کړی دئ.

داود خان هوتک د خپل زوی محمد هوتک په څېر ښه ادیب او شاعر و، دلته غواړم چي د ده یوه څلوریځه راوړم، بیا د هغې څلوریځي له رویه د بېلګې په توګه او د ده د زوی محمد هوتک د پښتو د شهکار د هغه کتاب چې د تېرو او د هوتکو د وخت د نارینه اوښځینه وو پښتنو شاعرانو، ادیبانو، پوهانو، عالمانو، او لیکوالانو تذکره د پټې خزانې په نامه په درو برخو کي په کال ۱۱۴۱ هـ کي پیل او په کال ۱۱۴۲ هـ ق ولیکل، د دواد هوتک او د ده کورنۍ د محمد هوتک د کتاب پټې خزانې څخه د نثري، ژبني، ګرامري، تاریخي او روایتي یا عنعنوي خصوصیات او ښېګڼې به په لنډ ډول تاسو درنو حاضرینو ته عرض کړم:

لومړی غواړم هغه څلوریځه چي ادبي صنایع پکښې راغلي او د ده د لیکوالۍ او شاعرۍ د ډېرو ښو خصوصیاتو نمایندګي کوي تاسو درنو حاضرینو ته ووایم:

چي د چا په زړه کي اور د میني بل سي
په اوربل یې لمبې ګډې حال یې بل سي
اور د میني کله مري د زړه د مېني
د اوربل مینه که تل د زړه په تل سي

که و پورته شعر او د داود هوتک د زوی محمد هوتک د پټې خزانې متن ته په یوه عمیق او تحلیلي نظر وکتل سي نو ژر به دا حقیقت ته ورسېږو، چي دا کتاب د ټولو هغو شاعرانو، ادیبانو او پوهانو د هغو وختونو د لیکدودونو د سبکونو سره وفق لري چي دا بیا پخپله د کتاب پر اصالت باندي دلالت کوي او د لیکوال د لیکني پر پوخوالي تامېږي او هغه عندي او تعصبي انتقادونه چي پر همدې کتاب (پټه خزانه) باندي د ځینو اشخاصو له خوا څخه سوي دي هغه د واقعیت په سیند کي د څو ځاځکو حیثیت غوره کوي او د هغو

انتقادات بیا د لړم د طبیعت تقاضا بلل کېدای سي او بس، که څه هم د داسي کړیو او سړیو و تعصبي ادعاګانو ته لوی استاد ارواښاد علامه حبیبي صاحب استادانه او عالمانه غوڅ جوابونه ویلي او هم یې لیکلي دي، دلته د وخت د کمښت او د موضوع د اوږدېدو او پراخېدو د مخنیوي په خاطر د نورو موضوعاتو څخه تېرېږم. راځم و دې خبري ته چي د محمد هوتک د لیکوالۍ ښېګني او خصوصیات د ده د دې شهکار کتاب (پټې خزانې) څخه په زغرده جوتېدای سي، چي د داود خان هوتک د کورنۍ د ستر غړي او د ده د زوی محمد هوتک د لیکوالۍ څو ښېګني او خصوصیات دلته تاسو درنو لیکوالو او پوهانو ته د پټې خزانې څخه د مطالعې په صورت کي عرض کړم:

د محمد هوتک د کتاب نثري او ژبنی خصوصیت او ګرامري، تاریخي او عنعنوي ښېګني په لنډه توګه ستاسي درانه حضور ته عرضوم:

درنو پوهانو! د دې کتاب (پټې خزانې) د متن لیک ته که سړی ځیر سي په واقعیت کي ډېر ښه پرله اوډل سوی یو خوږ پېول سوی نثر دئ. نو د دې څخه دا نتیجه اخیستل کېدای سي چي داود خان هوتک او د ده کورنۍ خصوصاً محمد هوتک د پښتو ژبي یو پیاوړی او توانا نثر لیکونکی ګڼل کېدای سي. د محمد هوتک په نثر کي ډېر ښه خصلت رواني او سلاست دئ، چي دا د ویونکي د هڅوني او جذابیت سبب کېږي، چي دا خصلت په نورو پخوانیو لیکونو او کتابونو کي نه لیدل کېږي، ځکه چي که موږ د تېرو پوهانو، عالمانو او لیکوالانو د پښتو ژبي نثرونه وګورو د محمد هوتک د نثر په څېر به نه رواني ولري او نه به سلاست او نه هم صراحت، د بېلګې په توګه که موږ د ځینو عالمانو د پښتو ژبي لیکلي کتابونه وګورو دا حقیقت به ژر راته څرګند سي، لکه د ارواښاد پیر روښان خیرالبیان، د پیر روښان د کتاب نثر متکلف او د نیم منظوم نثر په بڼه لیکل سوی دئ، چي د نثر د لیکلو دا ډول سبک په هغه وخت کي رواج و، دا رواج په دغه ټوله پښتني سیمه کي یعني د پېښور څخه بیا تر کندهاره پوري د نثر د لیکلو دا حالت و، آن تر دې بریده دا رواج رارسېدلی و، چي ملا نورمحمد غلجي پخپله د محمد هوتک معاصر او د یوه دربار اوسېدونکي هم وه، دی هم د خیرالبیان پر پله روان و، د داود خان هوتک او د ده د کورنۍ نثري ژبه بیا داسي نه وه، خصوصاً د محمد هوتک د کتاب پټې خزانې نثر لومړنی نثر بلل کېږي، چي روان، سلیس، با فهمه او د محاورې په لحاظ یو وتلی نثر بلل کېږي، که یو څوک ډېر لږ د پښتو ژبي سره اشنایي ولري د ده په نثر پوهېدای سي.

که موږ یو څه شا ته وګورو او د سلیمان ماکو د کتاب د څو پاڼو نثر مطالعه کو، نو د سلیمان نثر هم د پټې خزانې په نثر پسې نه سي رسېدلای، په را وروسته کي د خوشحال خان، پیرمحمد، افضل خان او عبدالقادر خان خټک نثرونه چي په عیاردانش، معرفة الافغاني، تاریخ مرصع، د پښتو په ګلستان او نورو کتابونو کي راغلي دي، که څه هم پورته ټوله کتابونه د پښتو ژبي په ادب کي ځانګړی ځای هم لري او د ډېر اهمیت وړ بلل کېږي، خو د دوی د پرتلې په صورت کي بیا هم د محمد هوتک د نثر سلاست او رواني په مسابقه کي میدان وړي.

د داود خان هوتک او د هغه د کورنۍ د لیکوالۍ بل ډېر ښه خصلت دا هم دئ، چي دوی پخپلو لیکنو کي د پښتو ژبي اصلي، زاړه لغات ډېر استعمالوي او د داود خان هوتک او د ده د زوی په لیکوالي کي لغوي ممیزات او ښېګني هم له ورایه ښکاري، چي دا خصوصیت د داود خان هوتک په اشعارو او د

محمد هوتک په پټه خزانه کي په څرګنده توګه معلومېږي، یعني دا چي د پښتو ژبي ډېر زاړه او لرغوني لغتونه او کلمې یې په ښه اسلوب او مهارت باندي راوړي دي، ډېر داسي لغات او کلمات د محمد هوتک په پټه خزانه کي راوړل سوي دي چي پخوانیو شاعرانو او لیکوالانو پخپلو اشعارو او لیکنو کي نه دي راوړي، چي اوس بېخي مړه دي او یا د فرهنګي یرغل په واسطه د استعماله لوېدلي دي، چي د بېلګې په توګه یې څو دلته راوړل غواړم:

| لغات | معنی |
|---|---|
| چندی | شاعر، چي اوس بېخي نه ویل کېږي. |
| برمل | مایښین، چي اوس بېخي نه ویل کېږي. |
| ترمل | مازدیګر، چي اوس بېخي نه ویل کېږي. |
| نمزدک | مسجد، چي اوس بېخي نه ویل کېږي. |
| بوتون | بت خانه، چي اوس بېخي نه ویل کېږي. |
| ځنډون | افق، او ډېر نور لغات چي اوس نه ویل کېږي. |

او دا لاندي لغات بیا په ندرت ځني لیکوالان او شاعران پخپلو لیکنو او شعرونو کي راوړي، لکه:

| | |
|---|---|
| خاتیځ | شرق |
| لوېدیځ | غرب |
| واکمن | پاچا، د زور او ځواک څښتن. |
| هسک | آسمان |
| جګړن | جنګیالی |
| رغا | او نور، چي پوهان او ښه شاعران یې استعمالوي. |

ځیني هغه کتابونه چي د پټي خزانې لیکوال د مأخذ په ډول استعمال کړي دي:

تاریخ سوري د محمد بن علي بستي کتاب.

د خدای مینه د شیخ متي خلیل غوریاخېل کتاب.

اخبار اللودي د شیخ احمد بن سعد اللودي کتاب.

کلید کامراني د کامران خان سدوزي کتاب.

غرغښت نامه د دوست محمد کاکړ کتاب.

محمودنامه د ریدي خان مومند کتاب.

او داسي نور ډېر کتابونه چي زموږ د هیواد د پښتو ادب په تاریخ کي د بډایني سبب سوي دي.

د داود خان هوتک د کهول په خاصه توګه د محمد هوتک د لیکوالۍ د نورو ښېګڼو په څنګ کي چي د ده د لیکوالۍ پر علمیت او ځواکمنتیا باندي ګواهي ورکوي هغه د ده په لیکنو کي د روایتي او عنعنوي برخي مراعات هم په څرګنده راڅرګندېږي، ده چي څه لیکلي دي هغه یې په عندي او انفوسي توګه نه دي لیکلي هر څه یې د سنده روایت او یا یې د خپلي مشاهدې پر بنیاد لیکلي دي، مثلاً د تېرو شاعرانو په احوالو کي مأخذ راوړي او یا پر راوي حواله ورکوي، او ډېر موضوعات یې د داود خان هوتک په حواله لیکلي دي.

مأخذونه:


۱. د پښتو ادبیاتو تاریخ، ارواښاد حبیبي.
۲. پټه خزانه، محمد هوتک.
۳. شل مقالې، لومړی، نهمه او دیارلسمه برخه، ارواښاد حبیبي.
۴. کندهار د تاریخ په اوږدو کي، د مقالو ټولګه.
۵. سل پګړی او یو پوړنی، محمد معصوم هوتک.
۶. فرهنګ عمید.

ليکوال : څېړنيار وجيه الله شپون
د افغانستان د علومو اکاډيمي

# داود خان هوتک

## سپه سالار ، شاعر او د پټې خزانې راوي

دوولسمه هجري پېړۍ زموږ د ملي او فرهنگي تاريخ له پلوه ډېره مهمه ده، ځکه په همدې پېړۍ کي د تاريخي افغانستان يوه برخه د پرديو له شوم يرغل څخه خلاصه شوې او د هېواد د يوې خپلواکې سيمې په توگه يې ديوه خپلواک حکومت په درلودلو سره ملي او سياسي حيثيت تر لاسه کړی دئ.

که څه هم ځينو وروستيو مؤرخينو د ميرويس نيکه تر قيادت لاندې د دغه ازادي غوښتونکي غورځنگ نېټه چا ۱۱۲۰ هـ، چا ۱۱۲۱هـ ليکلې، خو د پټې خزانې روايت تر ټولو مؤرخينو موثق او دباور وړ دئ. ميرويس نيکه په ۱۱۱۹هـ ق کال د افغانانو په مرسته وکړای شول د پرديو حکومت په کندهار کي پای ته ورسوي او يو ملي، آزاد او خپلواک حکومت تشکيل کړي.

د ميرويس نيکه سره په دغه آزادي غوښتونکي غورځنگ کي د کندهار د قومي مشرانو لکه : سيدال خان ناصر، بابو جان بابي، بهادرخان ، پيرمحمد مياجي هوتک، يوسف خان هوتک، عزيزخان نورزي، گل خان بابړ، نورخان برېڅ، نصروخان الکوزي، يحيی خان، محمد خان او يونس خان کاکړ تر څنگ، داود خان هوتک هم شامل و.

د پټې خزانې د روايت له مخې داود خان د قادرخان زوی په قوم هوتک، اصلي ځای يې مرغه و او پلار يې له دغه ځايه سيوري ته راغلی او هلته اوسېده، څه موده وروسته بيا د کندهار د کوکران په کلي کي استوگن شوی دئ. داودخان په ۱۰۲۹هـ ق کال په کوکران کي زېږېدلی، د کوچنيوالي په دوران کي يې علوم لوستلي، شاعر او عالم شوی دئ. داود خان په ړوب، ډېرې، د کسي په غره، پېښور او نورو ځايونو کي گرځېدلی، سياحتونه يې کړي او هغه يې ليدلي دي.

لکه څرنگه چې دمخه هم وويل شول نوموړی د ميرويس نيکه سره د ازادۍ غوښتني په غورځنگ کي شامل او د پښتنو يو فعال او تکړه سپه سالار و.

د گرگين تر وژلو وروسته د گرگين د انتقام اخيستلو په لړ کي صفوي دولت څو ځلي پر کندهار ناکامه يرغلونه وکړل او د صفويانو پوځونه د سختي ماتي سره مخامخ شول، دې پرله پسې ماتو صفوي دربار ډېر وقهراوه او يوې ستري خونړۍ لښکرکشۍ ته يې تابيا وکړله. د دې لښکرکشۍ مشري يې د مقتول گرگين وراره خسروخان يا کيخسرو گرجي ته وسپارله، گوندي چې د خپل تره انتقام واخلي، د ده سره په دې ستره لښکرکشۍ کي د خراسان ټول امراء، د هرات حاکم او د کرمان حکمران علي قلي خان مله وو، دا مهال د ميرويس نيکه له خوا د پټې خزانې د مؤلف پلار داود خان هوتک په فراه، سيستان او گلستان کي د افغاني ځواکونو د

سپه سالار په توګه وټاکل شو، چې له دغه ځایه له خسرو سره ونښت او میرویس خان ورته د یوې کمې قوې سره د هلمند د ګرشک په خواوشا کې انتظار ایسته، داچې د خسرو (۵۰) زره سپور او پیاده پوځ و، توپخانې او خزانې یې درلودې او (۱۲۰۰) تنه پکښې ګرجیان وو، چې د ګرګین د وینو په انتقام پسې راپورته شوي وو او په مقابل کې افغاني ځواکونه کم وو، پر دې بنسټ د خسرو فوځونو کندهار محاصره کړ، د کندهار خلکو د کلا په ساتنه کې میړانه او همت وکړ او په هره حمله کې به یې صفوي پوځ پر شا تمباوه، میرویس نیکه هم له سره خپل پوځونه سره راټول کړل او د کندهار د جنوب له خوا یې بلوڅ، ترین او نور قومونه هېواد ساتنې ته راپورته کړل، د خسرو پر پوځ یې یرغل وکړ، د لوژستیکي اکمالاتو لارې یې وربانديې بندي کړې، څرنګه چې خسرو په دې جنګ کې خپل نیم پوځ له لاسه ورکړی و، غوښتل یې، چې پارس ته وتښتي. خو میرویس خان له خپل (۱۶) زره کسیز ځواک سره ورپسې شو او د پاته (۲۵) زره متجاوز صفوي پوځ څخه ایله له پنځو سوو څخه تر اوو سوو کسانو پورې ځانونه ژوندي وایستل او خسرو خان هم د خپل تره ګرګین په برخلیک اخته شو، که څه هم دا جنګ په ۱۱۲۳هـ ق کې پېښ شوی، خو د هوتکي غورځنګ نومیالی سپه سالار داود هوتک تر ۱۱۲۶هـ ق پورې د ملي قاید میرویس خان له خوا د افغاني ځواکونو د سپه سالار په توګه ګمارل شوی او ښایي نظامي او حربي دندې به یې هم په پوره میړانې او شجاعت سره تر سره کړې وي.

سربېره پر جنګي کارنامو نوموړی د پښتو ژبې یو تکړه شاعر هم و او د شعر عالي طبع یې درلوده او ښکلي اشعار یې ویلي دي، له بده مرغه د ده نور اشعار په لاس کې نشته، یوازې دوې رباعي یې د پټې خزانې له لارې خوندي او تر موږه رارسېدلي دي، دغه رباعي په دې ډول دي:

چې د چـا په زړه کې اور د مینې بل سي
په اوربل یې لمبې ګډې حال یې بل سي
اور د مینې کله مـــــرې د زړه له مېنې
د اوربل مینه که تل د زړه په تل ســـي

***

که یې وینې وینې تل ځاځي له زړو څخه
څوک چې وینې تا، له ځوانو یا زړو څخه
د زړو له زړه کــــه وینې وینې ځـــاځي
په کړو د غم لویدلی ستا له کــړو څخه

د پورتنیو رباعیاتو له ادبي قوت، شعریت، ښکلا او مضمون څخه د شاعر لوړه شعري قریحه په ډاګه کېږي او دا ثابتوي چې داودخان هوتک د خپل پېر لوړ، با استعداده، تکړه شاعر او ادیب تېر شوی دئ، سربېره پر دې په پورتنیو رباعیاتو کې راغلي متجانسي کلمې، په ادبي فنونو کې د شاعر د صلاحیت او لوی لاس درلودلو ښکارندویي کوي او دا زباودي چې شاعر د شعر په ټولو تکنیکونو، اصولو او رموزو پوهېده، که نه د مبتدي شاعر لپاره په داسې کیفیت او صلابت شعر ویل ستونزمن کار دئ.

له بله پلوه داود خان هوتک د پټې خزانې راوي هم دئ، پټه خزانه د هوتکي دورې یو ستر قیمتي ادبي میراث دئ او په راپیداکېدو سره یې زموږ د ژبې، ادب او تاریخ ډېر تیاره ګوټونه روښانه شول او د امیر کروړ سوري د شعر په تر لاسه کېدو سره خو د پښتو شعر تاریخ آن دوهمې هجري پېړۍ ته ورسېد. د هوتکو د پاچهۍ په دېرش کلنه دوره کې په سلګونو شاعرانو او لیکوالانو آثار لیکلي او اشعار یې ویلي دي، د پښتو او پارسي ژبو ځینې مهم آثار دغه مهال منځ ته راغلي دي، چې د ځینو د ایجاد او تالیف په چارو کې

د هوتکو د کورنی د پاچاهانو لوی لاس و او د دوی په ملاتړ او مرسته دغه فرهنګي کارونه سرته رسېدلي دي، په تېره بیا د ادیپال، فرهنګپال، عالم او فاضل پاچا شاه حسین هوتک د پاچهی زمانه (۱۱۳۵- ۱۱۵۰ هـ ق ) په کندهار کې د پښتو ادب د روزنې او پالنې زمانه ده. په دې لړ کې د پښتو ادب دغه قیمتي اثر پټه خزانه هم د دغه نومیالي پاچا په پاملرنه او غوښتنه سره محمد هوتک په (۱۱۴۱- ۱۱۴۲هـ ق) کال تالیف کړی او د(۵۱) تنو شاعرانو شرح حال او اشعار یې پکښې خوندي کړي دي. د پښتو شاعرانو په دې تذکره کې د محمد هوتک د تذکره لیکنې دود د ختیځ د تذکره لیکنې د معمول دود سره یو شان دئ او په ځینو مواردو کې خو د خپلو اسنادو د کره کولو لپاره آن د ختیځو ژبو له اکثرو دودیزو تذکره لیکونکو څخه هم یو ګام مخ ته ځي.

نوموړي د شاعرانو په شرح حال او د پېښو په بیان کې د مستقیم او غیرمستقیم ماخذ او حتی د راویانو یادونه کوي او مطالب له سند پرته نه ضبطوي.

په دې راویانو کې یو د پټې خزانې د مؤلف محمدهوتک پلار داود خان هوتک دئ، چې د پټې خزانې په لومړۍ خزانه او دریمه خزانه کې ورڅخه محمد هوتک ډېر تاریخي واقعات، د مشاهیرو، شاعرانو او لیکوالانو شرح حال روایت کړی دئ. لومړۍ خزانه د هغو شاعرانو پر شرح حال او واقعاتو مشتمله ده، چې تر مؤلف دمخه تېر شوي دي، دویمه خزانه د هغو شاعرانو ذکر او بیان کوي چې د مؤلف معاصرین دي، دریمه خزانه د ښځو شاعرانو بیان دئ، چې شعرونه یې ویلي دي. په دویمه خزانه کې د لومړۍ او دریمې خزانې په پرتله روایات کم دي او ښایي عمده لامل به یې دا وي، چې په دغه خزانه کې معرفي شوي شاعران د پټې خزانې د مؤلف معاصرین وو او اکثر به یې لیدلي وي، ورسره ناسته پاسته به یې کړې وي او یا به یې د هغوی په اړه کره او ثقه معلومات له ځان سره درلودل.

محمد هوتک د پټې خزانې په لومړۍ خزانه کې له خپل فاضل پلار داود خان هوتک څخه په لاندې ډول څو ځایه روایت کوي:

د پټې خزانې د دوهم چاپ په ( ۸ او ۱۰) مخ کې له مغولو سره د بابا هوتک او د هغه د قوم د یو جنګ روایت داسې کوي:

"ما ته خپل پلار داودخان داسې نقل وکا، چه : سور غر په دغه ورځ د مغلو په وینو داسي لجندسو، چه پلوشو د لمر به برېښانده کا. په دې شخړه کې پښتانه لږ او بې ځواک وو، چه د سرو مغلو پېښه راغله او اخیسته یې وکا، یو څو غښتلي د بابا هوتک خپلوان ومړل، بابا هوتک په لوړ ږغ دا سندره ولولوله او په غشیو یې دمغلو تېرونه ځیرل ... هغه سندره زما پلار علیه الرحمه داسي راته ویلې:

پر ســـور غر بل راته نن اور دی
وګړیه جوړ راته پېـــغور دی
پر کلي کور باندي مغل راغی
هم په غزني هم په کابل راغی"

بل ځای په (۲۲) مخ کې د شیخ متي علیه الرحمه د نسب او شجرې په لړ کې داسي روایت کوي:

"زما پلار علیه الرحمه و ماته داسي نقل وکا : چه د خرښبون علیه الرحمه مرګ په مرغه کې و او اولاد یې هم په ارغسان او مرغه او پښین کي سره خپاره سول، ځیني ولاړل د ږوب او کوږک غرو ته او امران او حسن د شیخ متي ورونه پر هغه غرو اوسېدل، چه وروسته د مشر ورور په نامه مشهور سو ...".

تر دې لیکنې وروسته په (۲۴) مخ کې د شیخ متي بابا یو شعر هم د داودخان هوتک له خولې رانقلوي.

د پټې خزانې په (۶۴) مخ کې محمدهوتک د شیخ بستان بړېڅ په شرح حال کې د خپل پلار داود خان هوتک څخه د قدماوو په حواله داسې روایت کوي:

"چه شیخ بستان په قوم بړېڅ و، په ښوراوک یې کور و، د ده پلار محمد اکرم رحمه الله علیه هم د خدای ولي و او د ښوراوکه راغی د هلمند پر غاړه په یوه کوډله کې اوسېدی او د خالق په عبادت به اړ و..."

په (۶۶) مخ کې د شیخ بستان یوه بدله چې له داود خان هوتک څخه یې اورېدلې راوړې، چې کسر یې دا دئ:

اوښکې مې څاڅې پر ګرېوان یو وارنظر که پر ما
راسه ګذر که پر ما

همدارنګه په (۶۲) مخ کې د پټې خزانې مؤلف د شیخ تیمن علیه الرحمه لنډ ژوندلیک او د هغه یو قطعه شعر د خپل پلار داودخان هوتک له خولې روایت کوي، چې دلته د موضوع د اوږدېدو له امله د متن له راوړلو څخه تېرېږو.

د کتاب دریمه خزانه، چې د ښځینه شاعرانو تذکره ده په دې کې هم د داود خان هوتک د روایاتو ډېره برخه شته، چې په لاندې توګه ورته اشاره کېږي:

په (۱۷۸) مخ کې د نازو انا دیانت، عبادت، سخاوت، شاعري او نازو انا ته په خوب کې د میرویس نیکه د روزنې په اړه د شیخ بېټني علیه الرحمه وینا او داسې نور مسایل روایت کوي، چې په پټه خزانه کې یې داسې لولو:

"هسې روایت کا محمد کاتب الحروف له خپله پلاره چه نازو انا عابده، صالحه ښځه وه او خپلو زامنو ته یې ټول عمر په اوداسه شیدې ورکړلې او چه علیین مکان حاجي میرخان تولد سو خوب یې ولید: چه شیخ بېټنی رحمه الله علیه ورته وایي: دا زوی ښه تربیت که، چه لوی سي، لوی کارونه به وکا او په زیارت د بیت الله به ځان مشرف کا او له نسله به یې پیدا سي پادشاهان، چه دین به روښان کا".

همدارنګه د نازو انا د شخصیت تر معرفي وروسته د نازو انا یوه څلوریزه هم داود خان هوتک روایت کړې ده.

په (۱۸۰) مخ کې د بي بي حلیمې ژوند لیک او شرح حال هم د داود خان هوتک په روایاتو ولاړ دئ او د بي بي حلیمې یو پښتو غزل هم د ده له خولې په پټه خزانه کې کښل شوی دئ.

په (۱۸۲ او ۱۸۴) مخونو کې د بي بي نېکبختۍ او د هغې د نسب د شجرې په اړه ټول معلومات او د هغې یو قطعه شعر د ده له خولې په پټه خزانه کې روایت شوی دئ، لکه چې په پټه خزانه کې راغلي دي:

"... بي بي نېکبخته چه د خدای عارفه او رابعه د زمانې ده، یو کتاب یې کښلی دی، چه نوم یې دی (ارشادالفقراء) او په دې کتاب کې یې هسې نصیحتونه په شعر ویلي دي، چه فقراء او عبادالله ته مفید دي. دا کتاب په سنه (۹۶۹هـ) تمام سوی دی او زما پلار یې نسخه لیدلې وه په بنو کې، هغه وقت چه دی تللی و په سفر د هغه ځای، دغه شعرونه له هغه کتابه زما د پلار په یاد وه، چه ما دلته ځني نقل کړل ...".

په (۱۹۲) مخ کې د پښتنې شاعرې زرغونې د ژوندانه له حاله او د هغې د ادبي او علمي واک او ځواک څخه موږ ته معلومات، د دغه نومیالي فاضل روایات راکوي او همدارنګه د زرغونې په قلم د شیخ سعدي رحمه الله علیه د بوستان د لومړنۍ پښتو ژباړې څخه خبرېږو.

له پورتنۍ لیکنې څخه دا نتیجه اخیستلای شو، چې داودخان هوتک د هوتکو د ملي ازادي غوښتونکي غورځنګ یو نامتو سپه سالار او پاته په (۶۴) مخ کې

نوراحمد قرآنمل

# د هوتکي دورې اسلاف

کله چې د افغانستان د معاصرو تاریخي دورو په لړ کې د (نوښت، تمدن ، ژبنۍ پیاوړتیا، ملي فرهنګ، ملي ژبې او ملي خپلواکۍ) په اړوند خبرې کېږي افغانان په دې باور دي، چې د ملت په ټولو تاریخي پېرونو کې دوی د خپلو ټولو یادو سوو ناموسو څخه د وس تر بریده کوښښ کړی، چې خپلې ملي وثیقې د هغوی د درنښت او پایښت په موخه ژوندۍ وساتي او د تاریخ له تورو تمنو یې راوباسي، په دې اړوند سره تر دې چې هره تاریخي دوره ځانته ویاړنې او ژغورنې لري خو په تېرو دورو کې د نورو دورو په پرتله د هوتکي دورې ویاړنې په بېلابېلو عرصو کې د یادونې وړ دي، چې د هوتکي دورې د منظم ژوندانه، دولتي استحکام او فرهنګي خوځښتونو برمیالی ډګر له یاده نه وزي.

هغه په دې معنی چې د دې دورې په ډېره نژدې ماضي کې که له یوې خوا افغاني استقلال تر سوال لاندې و، چې کله کله به د مغلو او صفویانو تر نظامي بریدونو لاندې راتله په بل اړخ کې ور سره جوخت به د کلتوري یرغل ډېر نېرونګونه دلې پلې کېدل او د افغاني اصیل پښتني فرهنګ د له منځه وړلو جریان ته به یې لاره پرانستله، ولې د دې دورې په رامنځته کېدو سره د نورو فرهنګونو تر څنګ افغاني فرهنګ له ځانه سره د پام وړ لاسته راوړنې درلودې، چې یو په بله د هغوی څخه په دربار کې د تیت او پرک پښتني فرهنګ بیا یو ځای والي او رسمي رنګ ور کول دي، نه یوازې په هوتکي دربار کې پښتني قصیده سرایان وروزل ورسره تر څنګ د ډېرو نایابو تېرو پښتني اثارو او د هغوی د ناپېژندل سویو مؤلفینو او لیکوالانو راپېژندل د پټې خزانې په تاثیقي روایاتو سره را وړاندې سوي او تر ننه یې پښتني اصیل فرهنګ ته د پاته والي زمینه برابره کړېده.

د دې ټولګي مولف چې پخپله د ده په وینا په در بار کې کاتب الحروف یا فرهنګي سرغنه پاته سوی دئ د نوموړي کاتب الحروف او د پټې خزانې د مؤلف محمد هوتک پلار محمد داود د دې قول پر بنسټ یو اصیل کندهاری دئ، چې په ۱۰۲۹ هجري قمري کال د کندهار په کوهکران کې زوکړی دئ، په هغه وخت کې یوازې د هوتکي دورې کندهار ي ښاري استوګنان په کوهکران او زاړه ښار یا(پخوانۍ اسکندریه) کې اوسېدل. چې د موجوده اوسني احمدشاهي ښار یوازې د اوسنۍ ځلرمې ناحیې د بامیزوکو څې پر چاپېر چې د نوموړې دورې پر مهال دا سیمه د نادر شاه افشارمنشي محمود الحسیني په ده خواجه یاده کړې ده د سنځر خیلو کاکړو دحمزه زیو د قبیلې یو کورنۍ دلته استو ګنه وه او یو ووړ مسجد یې در لود، چې وروسته د احمدشاهي دورې په لړ کې تر یادې سوې کورنۍ وروسته د سردار شاولي خان بامیزي، د قاضي عبدالصمد د کورنۍ مشر نیکه سیف الله اخندزاده او د استاد ناشناس دوی د کورنۍ لوی نیکه فیض الله اخندزاده کورنیانې دلته استوګنې سویدي، پر دې بنسټ چې د محمدداؤد د محمد هو تک پلار هم کندهاری دئ، د نوموړي د زوکړې سنې ته که موږ له سږنۍ قمري سنې سره واټن ورکړو نو څرګندېږي چې محمد داؤد هوتک پوره څلور سوه کاله له نن څخه په کندهار کې زوکړی یا د دې تل وي.

دوهمه خبره د دې مقالې پر هغه محور راڅورلې چې د نوموړي دورې په لړ کې محمد هوتک بن داؤد د پټې خزانې په لړ کې چې د علامه استاد عبدالحي حبیبي له خوا په کره او سوچه ډول خپره سوې له سر. څخه پوره شپږ. سلنې مخکې یې د تائید او تنثیق لیکنې د نورو پښتنې او نړیوالو واقعبینو لیکوالانو تر څنګ په نسخ لیک د ارواښاد مولانا عبدالاحد غریبک په قلم خاکه یې ډول لیکلې او نیمګړی کتاب یې اوس هم زما ګرانمل سره خوندي دئ له یو لړ معاصرو او کتابتي مهارت او وړ تیاوو په لړ کې د هغې دوهم پړاوو هغه اسلافو او مېړنو ته ځانګړې کړې دي چې د نوموړي دورې په لړ کې په عقیدتي، سیاسي، نظامي او فرهنګي خلګو کې مطرح کسان وه، چې شمېره یې نژدې (۷۷ تنو ته رسېږي) په مختصر ډول درانه استاد ارواښاد عبدالرؤف بېنوا پخپل اثر (هوتکیان) کې په لنډ ډول تعریف کړي دي، چې د پټې خزانې څخه په مستقیم روایت دوه یا درې کسان د بېلګې په توګه په لنډ ډول بیانوو:

۱. د هوتکي دورې یو تن معاصر چې په پټه خزانه کې او نورو پاته سوو تاریخي آثارو کې یې یادونه نه ده سوې یو تن ابو عبدالرزاق ابن عطاالله دئ، نوموړي د فردوسي شهنامه تر پنځو زرو په زیاتو بیتونو کې لیکلې ده، د نوموړي په لاس لیکل سوې شهنامه د لیک تر څنګ زړه وړونکې میناتوري هم لري چې اوس د افغانستان په ملي ارشیف کې ساتله کېږي او ما له نن څخه دوې میاشتې مخکې لیدلې ده.

۲. د دې کسانو له جملې څخه بل ریدي خان مومند دئ، چې په اړه یې د پټې خزانې مؤلف لیکي : ریدي خان زوي د غیاث خان او د مسعود خان مومند لمسی دئ، چې په کلي د مومند یې نامه باله سي) نوموړي د شهنشاه محمود په ویاړ پښتو (محمود نامه) وویله چې دوه بیتونه یې دا دي:

بل یحـــیی خان و بل یې زوی محـــمد خان
ټول سره یو سول چې کړې مړ ګورګین خان
یونس کاکــړ و کا یر غـــل پر ګور ګـــین
پښـــتنو جوړ کړ پر ګـــرجـیانو ناورین

۳. بابوجان بابی: نوموړی د هوتکي دورې معاصر او د نوموړي دورې په رسمي چارو کې یو مطرح کس و، چې په اړوند یې محمد هوتک لیکي: "بابوجان بابی د میاجي صاحب شاګرد او مرید و او په سنه (۱۱۲۹) هجري یې په مثنوي د (شها او ګلان) قصه نظم کړه.

۴. د دوی په لړ کې یو د کاکړو د سنتیا قبیلې پانیزی میا عبدالحکیم (رحمت الله علیه) دئ، چې په نانا صاحب سره شهرت لري نوموړی چې په هوتکي دوره کې د کندهار زاړه ښار په دننه د نارنج کلا ته څېرمه په جنوب اړخ کې یو خانقا درلوده چې د نقشبندیې طریقې مریدان پکښې استېدل نانا صاحب چې د دې دربار په لړ کې د یوه روحاني مقتدا په توګه یې د تصوفو مخکښې پر غاړه لرله په زر ګونو مرېدان لرل، چې همدلته د زاړه ښار په دننه او د نارنج ماڼۍ ته څېرمه به یې له نوموړي نانا صاحب څخه د تصوفو او روحانیت درس اخیسته ولې پر دې اساس چې صاحب الحال خلګ د نورو انسانانو غوندې د نفسي غوښتنو تر تاثیراتو لاندې کم راځي ځکه نو هغوی ته ځای او مهال مطرح نه وي چیري چې یې زړه غواړي هماتله استوګنه لري، میا عبدالحکیم رحمه الله هم له دې سیمې څخه تلو چټیالی ته کوچ کړی، ځیني خلک پدې باور دي چې په نوموړي پوري اړوند د زرګونو مریدانو نفوس او په هغوی کې د نوموړي نفوذ د دې لامل و، چې د میرو یس خان نیکه زوی شاه حسین هوتک د هغه څخه د اقتدار د نیولو په عرض اړخ په هوا و، ځکه یې نو هغه دې ته اړ ایست چې سیمه پرېږدي.

په دې اړوند تر هغه زمان وروسته ځيني شعراوو شعرونه وويل چي يو يې د ساري په ډول دا دئ:

میا صاحب چې وایست شاه حسین له دې ښاره
غـــــرقې پاچهي ســــــوه د ولیانو له ګفــتاره

ولي کله چي موږ د پټي خزانې متن ته ګورو هلته دا خبره واقعيت نه مومي هغه په دې معنی چي پخپله د نوموړي خزانې مؤلف محمد هوتک ليکي: "ميا عبدالحکيم قدس سره العزيز که څه هم په اصل د کندهار ښار ساکن دی مګر په مياشتو ورک وي له کوره او سياحت کا او په حضور د بزرګانو (دطريقت د مرشدانو) حاضريږي او په ګوښو کي په عبادت بوخت وي".

په کندهار کي د نانا صاحب د استوګني وخت اروا ښاد استاد بېنوا له (۱۱۴۰ تر ۱۱۵۰) تخمين کړی دئ.

د نانا صاحب مرحوم د يوه مريد په قصيده کي چي نوموړي د مخمس نوم ورکړی او د مو حرم مولانا غريبک په اثر (خطوط و اقلام اعلي متقدمين) کي يې يوه برخه خپره سوي ده داسي ليکي:

چونکه مهجور از وطن شد پیر کامل کاکری
در فرافش ریشه کن شد کشنه درختان بری

سره د دې چي ميا عبدالحکيم صاحب د دې سيمي څخه کوچېدلی بيا هم د نوموړي ځاي ناستو نقشبنديې طريقې لړی نه ده پرې کړې او د ده پاته مريدان او خليفه ګان پاته سوي دي، د نانا صاحب د خليفه ګانو يادونه موږ له يادي سوي قصيدې څخه کولاي سو.

سه خلیفه ماند نورین وحـــــمید ذاکری
گفتند نور و نورزی بیزارم او چشم سری

د دې قصيدې په لړ کي د هغه د نورو مريدانو او خليفه ګانو يادونه نوره هم سوې خو پر دې بنسټ چي د دې مقالې ليکنه مختصره سي ځکه نو پر لاندي څلورو خليفه ګانو باندي خبره کوو:

الف- نورين: له نورينو مراد يو ميا نور محمد نورزی دئ، چي د کندهار ښار جنوب پلو ته په ماله جات کي د ده باغ فرقې ته څېرمه يې زيارت دئ، د نوموړي زيارت څخه ما څو ځلي ليدنه کړې چي وروستنی ليدنه مي له سر څخه لس کاله پخوا هغه وخت کړې چي د کندهار د يوه صوفي ژوندي شاعر حاجي بهاوالدين الهام، استاد حاجي احمد صميم، قاري محمد طاهر ناتوان، استاد نثار احمد، ډاکتر عبدالواحد منيب راسره او د هغه په زيارت کي مو يوه صوفيانه مشاعره وکړه، چي ثبت کسټ يې اوس هم په غريبک کتابتون کي قرار لري، د نوموړي ميا نورمحمد نورزي و قبر ته د وختنو را په دې خوا يوه مناره موجوده وه، چي د رواني شلمي پېړۍ په شپږمه لسيزه کي د شوروي ير غل پر مهال د ماله جات په لويه قوه کي د ذاکر شريف له غونډۍ څخه د زرهدار په مرمۍ وويشتل او ونړول سوه.

ب : له نورينو څخه دوهم نور ميا نورمحمد داوي چي د کندهار ښار په شرقي پلو کي ډامبر پر غاړه د مانجي سيمي ته څېرمه پروت زيارت لري نوموړي هم د نانا صاحب د مخلصانو څخه دي د نوموړي پر مزار مخکي يوه پخوانۍ تاريخي وداني ودانه وه، چي په موجوده وختونو کي د نوموړي د کورنۍ پاتو کسانو څخه د افغانستان د يوه ديني، فرهنګي شخصيت اروانښاد عبدالهادي داوي زوی انجنير عبدالغفار داوي له خوا د ۱۳۷۷ لمريز کال د جدي پر ۴ نېټه په نوي او اساسي ډول ورغول سوه، د نوموړي ميا نورمحمد داوي د مړيني نېټه ما قرانمل هغه وخت له ځا نه سره ثبت کړې چي په زابل ولايت کي و سرنۍ بادام ګل مشاعري ته پر لاره د دې يادښت اخيستني پر مهال ځوان شاعر عبدالقيوم مينه وال او ځوان شاعر خليل احمد څارن راسره مله وو، د نوموړي د قبر سر ته پر ولاړه شنخته داسي ليکلي دي "وفات مرحوم

ملا نورمحمد اخند داوی ولد شهاب الدین في سنه (۱۲۰۷) ق م.

**ج: حمید ذاکري:**

عبدالحمید ذاکري د کندهار ښار جنوب شرق پلو ته په لس کیلومترۍ کې د ذاکر شریف په کلي کې د صاحبزاده خېلو هوتکو د هدیرې په ماجر کې پروت دئ. د دې قصیدې له لیکو ښکاري چې تر نورېنو وروسته یې د نقشبندیې طریقې د خلافت چارې تر غاړه وې.

د رخصت سوو اسلافو په باره کې د دې کورنۍ ځوانیمرګ شاعر عبیدالله ځګرخون یوه وېرنه لري، چې د دې کورنۍ ډېر نیکه ګان یې پکښې یاد کړي دي.

**د: سلیمان اخندزاده:**

د هوتکي دورې د پای په وختونو او د احمد شاهي دورې په ټوله دوره کې یو بل کس سلیمان اخندزاده دئ، چې په تاریخي روایاتو کې د استاد کل بلاد احمدشاهي په نوم یاد سوی، سره د دې چې لاسنیوی یې په نقشبندیه طریقه کې د میا عبدالحکیم رحمة الله علیه له ښاخ سره کړی د نورو واړو طریقو (قادریې، چشتیې) خلیفه توب یې هم درلودلی دئ، چې د خلیفه توب آثار یې د احمدشاهي او تیمورشاهي دورو په لړ کې د نستعلیق لیک د خطاط میرزا ګل محمد زمینداوري په لاس په نسخ او نستعلیق لیکونو زما (قرانمل) سره په کورني خطي موزیم کې ساتله کېږي.

۵. د هو تکي دورې بل کس میا شېرمحمد ولي د میا عبدالحکیم رحمة الله علیه ورور دئ، چې نوموړی په هغه دوره کې د کندهار استو ګن دئ. کله چې میا عبدالحکیم رحمة الله علیه له کندهاره کوچېدی نوموړی له هغه سره نه دئ تللی، بلکي دلې په کندهار پاته سوی. د نوموړي مقبره د خیبري غونډۍ ته څېرمه پرته ده، د نوموړي له اولادې څخه اوس هم ملا عبدالرحمن او د هغه زوی حضرت شاه پاته دي چې په دیمراسي کې اوسي.

د (٦٠) مخ پاته:

د میرویس نیکه سره په دغو ټولو مبارزو، جګړو او سرښندنو کې نږدې ملګري پاته شوی دئ. پر دې سربېره د خپل وخت یو نامتو شاعر، لیکوال، عالم او فاضل شخصیت و، بېلابېلو سیمو ته یې سفرونه او سیاحتونه کړي او په دې ترڅ کې یې د مشاهیرو، لیکوالو او شاعرانو د ژوندانه او د هغوی د ادبي او فرهنګي کارونو څخه ځان خبر کړی، د هغوی اشعار یې لوستلي او په تاریخي پېښو یې ځان پوه کړی دئ، چې په پټه خزانه کې د ده روایات د دې خبرو ښه ثبوت کېدای شي.

د پټې خزانې د روایت له مخې نوموړی په (۱۱۳۶ه ق) کال وفات شوی او په کوکران کې د خپل پلار د قبر تر څنګ خاوروته سپارل شوی دئ.

اروا یې ښاده او یاد یې تلپاتې

اخځلیکونه:


۱. د محمد هوتک یاد. د محمد هوتک د ملي سیمینار د مقالو مجموعه، د افغانستان د علومو اکاډیمۍ د ژبو او ادبیاتو مرکز، ۱۳۶۲ل، دولتي مطبعه، ۶، ۱۱، ۹۰مخونه.
۲. صدیق الله رښتین. د پښتو ادب تاریخ، دویم چاپ، پښتو ټولنه، ۱۳۷۷ل، ۶۸مخ.
۳. محمد هوتک. پټه خزانه، دویم چاپ، د پوهنې وزارت، ۱۳۳۹ل، بېلابېل مخونه.
۴. سرمحقق زلمی هېوادمل. د پښتو ادبیاتو تاریخ، لومړی ټوک، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۷۹ل، ۲۰۵مخ.
۵. سید محی الدین هاشمي. مشاهیر افغانستان، دوهم ټوک، د محمد رفیع ژباړه، اداره کتابخانه های سیار آریک، ۱۳۷۹ل، ۳۳– ۳۶ مخونه.
٦. پوهاند عبدالحی حبیبي. نومورکي مؤرخین، دویم چاپ، د لوی احمدشاه بابا علمي او کلتوري مرکز، ۱۳۸۳ل، ۶۲مخ.
۷. مرحوم عبدالحی حبیبي، تارخ مختصر افغانستان، دریم چاپ، دانش کتابخانه، پېښور، ۱۳۷۷ل، ۲۴۶– ۲۴۷مخونه.

ځېړونکی شېرشاه رشاد

# شها، شهی، شهو

د فلکلوریکو ادبیاتو ځیني ځېړونکي په دې اند دي، چې د اوسني نوي ادب د ښکلي او ښایستې مانۍ ستني اولسي (شفاهي) ادب دئ. ځیني بیا اولسي ادب د هر اولس د ژوندانه هینداره بولي.

یقیناً په اولسي ادب کې د هري ټولني د انسانانو له تاریخه نیولې تر مذهبي اعتقاداتو او دود و دستور پوري ټول اړخونه نغښتي دي. که راسو پښتنو او پښتو ژبي ته، پښتو ژبه د شفاهي ادب له پلوه تر نورو ټولو ور نژدې او ورځېرمه ژبو بډایه ده.

د دې برخي ځېړونکي د شفاهي ادب بډاینه د ټولني د پرګنو د لیک لوست په کښته کچه کې بولي. له ډېره بده مرغه پښتانه د سواد له نعمته او د ژوند له مدنیته لیري ساتل سوي دي، د ډېرو پښتنو ژوند له کلیو او بانډو سره تړلی دئ. دغه کلیوالي ژوند او مناسبات یې او تر ټولو وړاندي په پښتنو کي هنري ذوق د اولسي ادب د ایجاد او ودي لامل ګرځېدلی دئ.

د پښتو اولسي ادب یوه غوره او په زړه پوري برخه نکلونه دي، نکلونه په پښتني ټولنه کي یوازي د ساتیرۍ وسیله نه ده، بلکي په کورو کي میندي او انا ګاني او په کلیو او بانډو کي مشران او سپین ږیري، کوچنیانو او ځوانانو ته د اخلاقي ښېګڼو د ښوولو او د کرغېړونو کړنو څخه د مخنیوی لپاره پخواني نکلونه په خورا خوږه ژبه وایي.

د ښاغلي معصوم هوتک په خبره، د پښتني ټولني نکلچي د شاعر، انځور ګر، لوبغاړي او سندرغاړي غوندي د ځو هنرونو څښتن به و، ښه ږغ به یې و، ښه ایکټر به و، ډېر دراک او روانشناس به و.

د دې نکلونو په ارته لمنه کي د ننګ، غیرت، مېړاني، پښتو، میني او محبت خوږې خبري راغلي دي. دا نکلونه د پښتنو سپېڅلې او لېونۍ مینه ښیي.

د دې نکلونو نارو ته که ځیر سو، په دغو نارو کي د پښتانه ځلمي توره لنګۍ، جګه شمله، د بګړۍ ولونه، کاږه برېتونه، غوړي څني، سپینه توره او د پښتنې پېغلي د پاولیو شرنګ، په رنجو توري سترګي، پر زنه شینکي خالونه، سپین باړخو، تور لونګین، بخملي ګوتي، سپیني منګولي، هغه څه دي، چې د نورو ژبو او اولسونو په شفاهي ادب کي نه تر سترګو کېږي.

په دغو نکلونو کي یو په زړه پوري نکل "دلی او شهو" نومېږي، دغه نکل لکه نور شفاهي ادب له پېړیو، پېړیو راهیسي، خوله پر خوله او سینه پر سینه تر موږ ه پوري رارسېدلی دئ او د اروابناد محمد ګل نوري په ډېر همت او زیار سره د (۱۳٦۵ هـ .س) کال په "ملي هینداره" کي په منثوره بڼه خوندي سوی دئ.

د اروابناد نوري تر ملي هینداري ۲۵۵ کاله شا وخوا وړاندي په (۱۱۱۰هـ. س) کال

نوموړی نکل د پښتو ژبې د ستر شاعر خوشال خان خټک دپرلسم زوی (تاریخ مرصع په حواله) صدر خان خټک پښتو نظم کړی دئ، چې "دلی او شهی" نومېږي او د پېښور د پښتو اکاډیمی له خوا د تیري مېلادي پېړۍ په شپږمه لسیزه کي چاپ سوی ایسي. (د چاپ کال یې پر وقایه او په متن کي زما په سترګه نه سو).

همدا راز په (۱۳۰۰ هـ. س) کال دغه نکل یا کیسه د عبدالباقي باقي له خوا هم په نظم لیکل سوې ده او نوم یې دئ "دلی او شاهی". دا کتاب په (۱۳۷۱ هـ.س) کال چاپ سوی دئ، د دې تر څنګ د ښاغلي خیال بخاري د څېړونو له مخې، دغه نکل د "دلی او شهی" په نامه د معظم نومي یو بل شاعر له خوا هم لیکل سوی دئ.

په دغو څلورو نکلونو کي زما اړه د دغه نکل د نامه د دوهم جز (شهو او شهی) سره ده.

موږ د پټې خزانې په استناد د پښتو ادب په منظومه برخه کي په (۱۱۲۹ هـ. س) کال د بابو جان بابي د "شها او ګلان" په نامه د یوې داسي منظومې سره مخامخ کېږو، چي له نامه پرته یې نور هیڅ ډول معلومات نه لرو.

د بابو جان بابي د منظومې د نامه "شها" او د نورې، صدر خان خټک، باقي او معظم د نکل د نامه "شهو، شهی او شاهی" د یوه نامه څو ډولونه بولم، چي په پښتني نکلونو او کیسو کي د مینې او محبت ښځینه اتله او په عامه معنا د مینې، محبوبې او معشوقې مراد څني اخیسته کېږي. د "شهی" نوم په پښتنو کي ډېر او څار دئ او له ډېرې مینې څخه یې کله "شهو" هم بولي لکه: درخانی - دُرخو، بي بي - بیبو، شېرینه -شیرینو او داسي نور.

دا کلمه سربېره پر پښتو شفاهي ادب، د پښتو په لیکلي منظوم ادب کي هم د ځینو شاعرانو په شعرونو کي تر سترګو کېږي.

سیدال خان ناصر په یوه بدله کي وايي:

شهی ده ستمګاره، خوشال زړونه به زخمي کا
لیندی لري د ورځو، د باڼو غشي کاري کا

شېخ تیمن کاکړ بیا وايي:

نه به بیا یم، نه به بیا راسي - نه به تیاره شپه
زما رڼا سي - نه به شهی راته پخلا سي
بېلېږي پېر یې اوس دیون راغی
ږغ سو ناڅاپه، چي بېلتون راغی

بابوجان یوسفزی (لغماني) وايي:

چي خبر سوې د شها له پټه رازه
تل وصال خلوت نشین مشغول له رازه

خوشال خان خټک وايي:

دشهی تورو ســــنبلو
پر سپین مخ یې تسلسلو

سترټولواک لوی احمد شاه بابا وايي:

د شها د انګن سیل سې احمده!
که تسلیم خپلي رضا کړې زما دله

له پښتو منظوم ادب څخه دې کلمې ځینو قاموسونو او فرهنګونو ته هم لاره کړې ده.

پښتو قاموس د دې کلمې درې سره ډولونه (شها، شهی، شهو) راوړي دي او په محبوبه او معشوقه یې معنا کړې دي.

ډاکټر هانري بېلیو په خپله لغتنامه Dictionary of the Pakkhto Language) or Pakshto) کي یوازي شها ډول راوړی او په (A Mistress) او (Sweetheart) یې معنا کوي.

سید بهادر شاه ظفرکاکاخېل په ظفراللغات کي شها او شهی راوړي او په

محبوبه، خوبا، معشوق، دلربا یې معنا کړي دي او د خوشال خټک دغه شعرونه هم ورسره راوړي:

بل مخ مه ګوره خوشاله
مخـــامخ شه په شـــها

او یا:

پکښې زړه د خوار خوشال دئ، چې خوږ نشي
ډمې ورو، ورو د شهی زلفینې موږه

پښتو - پښتو تشریحي قاموس درې سره ډوله راوړي او په محبوبه او معشوقه یې معنا کوي، خو د شهو مخې ته دا هم لیکي، دا یو ښځینه نوم دئ او د دلې مینه وه.

پښتو انګریزي قاموس هم درې سره ډوله راوړي او په ( Darling, Beloved, Mistress) یې معنا کړي دي.

روسي پښتو پوه اسلانوف هم په پښتو - روسي قاموس کې (شها، شهی، شهو) په دروو سرو ډولو راوړي او په (возлюбленая) یې معنا کوي، چې د مینې معنالري.

د مغول شاهجهان معاصر عبداللطیف عباسي (۱۰۴۸ هـ . س مړ) په "لطایف اللغات" کې لیکي:

شهي درې معناوي لري . پاچهي، زوم او هر خوږ شی.

سید احمد خان دهلوي په "لغات النساء" کې " شهاني چوړيان" - د ناوې بنګړي، "شهاني مهندي" د ناوې نوکریځي او په "شه بالا" کې "شه" د زوم په معنا راوړي او شه بالا د زوم سره پر اوږه ولاړ ملګری معنا کوي.

احسان بهرامي په "فرهنګ واژه های اویستا" کې شینه (Šayana) په شهر نشمین شاه او پلازمېنه معنا کړی دئ، کېدای سي، چې د دغې کلمې زوړ او بشپړ ډول به شهينه (Šahyana) و، چې اصلي برخه یې "شه" وه، او "ینه" یا "یانه" برخه یې مکاني شاوندی دئ او په پښتو کې دا ډول مکاني شاوندی موږ په وښیانه (و ښخور یا علف زار)، اغزیانه (د اغزو ځای یا خار زار)، کوکیانه (ګلستان - ګلزار) او د ځایو په نومونو کې لکه : لودهیانه، درنګیانه او بامیان کې وینو.

له پورتنیو یادونو څخه دا اخیستنه کېږي، چې شها، شهی، شهو، د یوې کلمې درې ډوله دي، معنا داره واحد یې "شه" دئ، چې په تذکیر ډول په شاه اوړي او په پاچا او زوم معنا کېږي او په تانیثي حالت کې په شها اوړي او د ناوې او مینې معنا ورکوي: د ډاکټر پالوال صاحب په خبره، شها د ناوې په معنا د کابل ښار په شاوخوا پرتو پښتنو کې ډېره مروجه او مستعمله کلمه ده.

اخیستځی :


۱. پټه خزانه، محمد هوتک، تعلیقات او لمنلیکونه - علامه حبیبي، دوهم چاپ ۱۳۳۹ ل کال - کابل.
۲. لغوي څېړنه - علامه رشاد ، ۱۳۸۷ ل کال - کندهار.
۳. فرهنګ واژه های اویستا - احسان بهرامي، ۱۳۶۹ ل کال - تهران.
۴. پښتو قاموس - پښتو ټولنه - ۱۳۳۳ ل کال - کابل.
۵. پښتو - انګریزي ډکشنري - هانري بیلیو - ۱۸۶۷ م کال - لاهور.
۶. ظفراللغات - سید بهادر شاه ظفر کاکاخیل - پېښور.
۷. پښتو روسي قاموس - اسلانوف - ۱۹۶۶ م کال - مسکو.
۸. پښتو انګریزي قاموس - د علومو اکاډیمي - ۱۳۵۸ ل کال - کابل.

عبدالمجید بابی

# د هیواد نومیالي پوځي مخکښ بابو جان بابي

## او د ده پوځي ورتیاوي

**سریزه:**

تاریخ موږ ته د تېرو مهالونو د پېښو ډولونه، طرحې او همدارنګه د خوځښتونو او په همدې برخو کې د اولسونو او د دوی په منځ کې د اتلانو د اتلولیو څخه انځور سوې هینداره وړاندې کوي.

د تاریخ ویاړلي او ارزښتناکه څپرکي تل د اتلانو د شهکاریو او اتلولیو څخه ډکېږي، او دا هر څه بیا د ټولنپېژندنې په زړه پورې اړخونه جوړوي. تاریخ د خلکو او ولسونو د کړنو، هڅو او زیارونو لاسته راوړنه ده او همدا ولسونه بیا د ټولنیزو پرمختګونو، غوړېدو او سمسورېدو آریز ځواکونه او د تاریخ منځته راوړونکي دي.

په همدې ولسونو کې بیا منلي او پیاوړې شخصیتونه د ټولنې په سترتیا او همدارنګه د هغې ټولنې د تاریخ پر بهیر باندې د اغېزمنتیا محوري ستنې دي. که د دوی مخکښه هڅې او کړنې د خپلو خلکو د ذهن او عیني خوند او رنګ څخه برخمنې وي، هغه مخکښان د تاریخي آزموینو څخه بریالي او سرلوړي راوتلي وي. د هغوی سره د خپلو ولسونو او په ټولنیز جوړښت کې د بېلابېلو سریو او کړیو ملاتړ ملګری وي او بیا نو د تل لپاره په تاریخ کې د شاباسي او ستاینې وړ ګرځېدلي وي او که د بېلابېلو مهالونو مخکښه شخصیتونه د لوړو موخو لرونکي نه وي او یا د نوښت، فکري پیاوړتیا، پوهې، ځراکت او د ځانګړو زړه سواندو او هیوادپالو ولولو څخه بې برخې وي او په بې غوری سره یې د خلکو او د استوګنې د مېنې هویت یې د ولسي شتمنیو د بربادېدنې او و نورو ته په لمنه کې د ورلوېدنې لامل ګرځېدلي وي داسې سړي تل د تاریخ د قضاوتونو په پاڼو کې پړ او د ولس او خپلو ټاټوبو سره په جفا باندې محکوم وي.

دا چې هیوادپال د تاریخ د پاڼو ویاړ او د ولسونو د خولو تلپاتې ورد او د زړونو او فکرونو پر پلازمېنو د درنښت او منښت وړ واکمنان وي وړ ده چې د دغو اتلانو د څېرو په رڼا د نن ورځې د ځلمیانو په مخ کې د ژوندانه د پرتې لارې تیاره ګوټونه وځلوو او د هغو کسانو پر خوله مهرونه ولګوو، چې وایي په تېرو باندې بوختېده د اوس او په راتلونکي کې د خوب اندېښنه رامنځته کوي.

زما له انده تېر، اوس او راتلونکي د ژوندانه د ځنځیر تړلي کړۍ دي، چې د یوه مهال د لاسته راوړنو او تجربو څخه د بل مهال د پرمختګ لپاره کار واخیستل سي او تر څنګ یې د یوه مهال د تېروتنو او ښوېېدنو څخه په بل مهال کې د لاس اخیستنې په برکت ځان او نور د یویزو او ګډو ستونزو او کړاوونو څخه وژغورل سي.

زما همدا لیکنه د هیواد د ویاړلي تاریخ په یوه ټاکلې برخه کې زموږ د یوې ویاړلې څېرې او د هوتکو د واکمنۍ د یوه اتل پوځي مخکښ بابوجان بابي د پوځي وړتیا په اړه ده.

چي خپل ټول ژوند يې د افغان او افغانيت د
وياړونو د لوړتيا لپاره په سربښندنه او بې سارو
ستړياوو او خولو تويېدنه سره تېر کړی دئ.
د دوی د پتمن ژوندانه او تلپاتو کارنامو
په اړه هر اړخيزه پلټنه او ټکي په ټکي د ده د
شان سره وړ يادونه د خپل توان څخه دباندي
ګنم، ځکه د دې ډول نوميالیو يادونه، درنښت
او لمانځنه د نوموتو څېړونکو پراخي ناستي،
څېړني، پلټني او ورسره پراخي پوښتني او
ګروهېږني غواړي، څو د دې ډول زمينو په
برابرېدو سره هغه څه تر لاسه سي چي هم د
دغه ډول نوميالیو يوه ډېره کوچنۍ حق ادا ینه
سوې وي او هم راتلونکو ته څه نا څه هغوی په
اصلي بڼه ور پېژندل سوي وي.
دا چي نني علمي سيمينار ته زما د ليکني
سرليک د بابوجان بابي دا د هيواد او ولس د
ننګ او ناموس د اتل شاه ځلمي د پوځي وړتيا،
جګړو، بريدونو، سربښندنو او د خپلو ولسونو په
ملاتړ په نره د درېدنو مقابلو او زړه ورتياوو په
اړه ده، په لاندي ډول يې تر سريزي وروسته
په راټولېدنه او اوډنه سره وړاندي کوم:

## د بابوجان بابي پوځي وړتيا او د ده لوړ پوځي او ټولنيز شخصيت:

د ګران هيواد افغانستان په وياړمن
تاريخ کي د هوتکو ۳۲ کلنه واکمني د هغه
تاريخي حيثيت څخه برخمنه ده، چي د هيواد
د ستر ژغورونکي ميرويس خان نيکه له لوري
يې د ملي ترون په رڼا کي د خپلواکۍ لپاره
بنسټ ايښودل سوی او پوخ سوی دئ.
همدا د ميرويس نيکه ځيرکه او د
سياسي نوښتونو څخه ډکه مشرتابه وه، چي د
بابوجان بابي غوندي پوځي اتلان يې د
خپلواکۍ او تاريخي دښمنانو د ټکوني په
ډګرونو کي په سربښندني سره ملاتړ او ورسره
تر څنګ يې د درېدني وياړ درلود.
د پټي خزانې د ليکني له مخي بابوجان
بابې د اتغر د سيمي د يوه مخور مشر کرم خان
زوی او د خپل وخت د ادب او پوځي ډګرونو
اتله څېره وه، چي په سياسي، اجتماعي او
پوځي ډګرونو کي يې نوره اړونده پېژندنه
داسي کولای سو:

## بابوجان بابی د ملي قايد ميرويس خان نيکه په مشرۍ په ملي جرګو کي د ګډون وال په توګه:

### الف - د کوکران جرګه:

کله چي په کندهار کي پردي واکمن
ګرګين د ميرويس نيکه سره د ظاهري
دوستۍ د څرګندتيا لپاره د هغه څخه په
آمرانه بڼه د زوی لپاره د هغه د لور د غوښتلو
غوښتنه وکړه، ميرويس خان نيکه د مشورې
لپاره د مشرانو او مخورو لومړنۍ جرګه د
کوکران په کلي کي چي د کندهار ښار په
لوېديځه څنډه کي پروت دئ راوبلله، جرګه
تر ماښامه وغځېده، د نورو مخورو تر څنګ
بابوجان بابي هم د دې جرګې د غړيتوب وياړ
درلود، جرګې ته ميرويس خان څرګنده کړه
چي د ګرګين غوښتنه هغه د ځان، قومي
مشرانو، افغانيت او ټول ولس د لوړ شان په
وړاندي سپکتيا ګڼي، تر ډېرو خبرو وروسته
ټول مشران تر داسي اغېزې لاندي راغلل، چي
د ميرويس نيکه سره يې په قرآن مجيد، توره،
مالګه او ډوډۍ قسم ياد کړ، چي ټول به ستا تر
شا درېږو او ګرګين ته به د دې ګستاخۍ سزا
ورکوو. ميرويس نيکه هغوی دې ته واداره
کړه چي د اوس لپاره به د خدمت کوونکو
ښځو څخه د هغې په خوښه د ګرګين غوښتني
ته د ملي غورځنګ تر پخېدو پوري هو وواياو
نور به په پټه خوله په تدبير سره د انتقام لپاره
وروستۍ چاري بشپړي کړو.

### ب - د ميانجې جرګه:

دا سيمه د کندهار ښار په شمال ختيځه
څنډه کي د شلو ميلو په واټن موقعيت لري،
دلته په ملي جرګه کي د ميرويس نيکه له
لوري د خپلواکۍ د تر لاسه کولو کړنلاره او د

پردي حکمران او د هغه سره د میشتو پردیو ځواکونو د منځه وړلو تدابیر څرګند سول، او دلته یې د قومي او ټبرني مشرانو څخه د ملاتړ غوښتنه وکړه. دې مشرانو چي په ګډون کي یې بابو جان بابي هم شتون درلود په قرآن مجید باندي په قسم یادولو سره د میرویس نیکه سره د ملګرتیا یادونه او څرګندونه وکړه.

دا چي د نورو مشرانو او ملي څېرو تر څنګ بابو جان بابی هم د دا ډول مهمو ملي مسئلو د څېړلو او پرېکړو په مهمو جرګو کي د برخي لرلو وياړ درلود، ښکاره کوي چي د هغوی اجتماعي او ټولنيز موقف ښه پوخ او پخپلو خلکو او ولسونو کي د سياسي وړتيا پاخه تدبير او ځانګړې هوښيارتيا او ځراکت له مخي مشهور او په دې برخو کي د خپلو خلکو د ملاتړ څخه برخمن ولسي شخص و، چي پر هغوی باندي د خپلو خلکو او ولس د بېلابېلو پرګنو او د سيمو د اوسېدونکو دا ډول ډاډ او په دونده لوړه کچه پر هغوی باندي د خلکو له خوا د حساب کولو بنسټ د ارزښت او اهميت وړ دئ. د دې ټولو وړتياوو او ښېګڼو څخه د هغوی دټولنيز لوړ موقف څرګ د ورايه لګېدای سي، نو ځکه هغوی د ستاينو تر څنګ د دې حق لري چي د ژوندانه د بېلابېلو اړخونو او د دوی د شخصيت د هري برخي د روښانتيا لپاره لا پلټني، څېړني او پراخي ګروېږني وسي.

**بابو جان بابی او د کندهار ښار پر سهېلي برخه د خپلواکۍ لپاره د هغه په مشرتوب برید:**

کله چي د ميانجې په ملي جرګه کي د خپلواکۍ او هيواد ژغورني لپاره پرېکړي وسوې، له مخي يې قومي مشرانو او مخورو ته دندې ورکړل سوې. د بلوڅو، کاکړو او ترينانو مشرانو ته وويل سوه چي د ماليې د ورکړي څخه سرغړونه وکړي.

دا خبر چي ښار ته راورسېد پردي واکمن ګرګين يې هم خواشيني او هم يې په خروښ کړ، بيا ده د خپلو سلاکارانو ډله راوغوښتله چي ظاهراً ملي قايد هم په هغو کي ګډون درلود.

دې غونډې پرېکړه وکړه چي د کاکړو او بلوڅانو د ټکوني لپاره به لښکر لېږي، لښکر به لومړی د روغي او جوړي لپاره کار کوي که دا زمينه نه برابرېده نو د پرېکنده دريځ لپاره به د ګرګين تر ورتګه ځانونه ساتل کېږي.

ملي قايد د هوتکو او ناصرو د لښکرو د راټولېدو دنده پر غاړه واخيسته، بابو جان بابی هم ماموره سو څو د اتغر له سيمي لښکر راغونډ کړي.

همدارنګه يوسف خان هوتک ته د سيوري، سيدال خان ناصر ته د ناصرو او د ملي قايد ورور يحيی خان ته د مرغې څخه د لښکرو د راټولېدو چاري وسپارل سوې.

بابوجان بابي په ولس کي د خپل نفوذ او ولسي برلاسی په برکت وکولای سوای، چي په ډېر شمېر لښکر راغونډ کړي او د هغه دندې پر بنسټ چي د ملي قايد له خوا ورکړل سوې وه، و لارښووني ته سترګي په لار و.

کله چي د پرديو د واک څخه د هيواد د ژغورلو لپاره دسياسي ځواک په وړتيا د ميرويس نيکه ټول اړوند پړاوونه بشپړ سوه او د پردي واک د واکمنۍ څېرې د مړيني لپاره يې پرېکړه پخه کړه، دا د پټې خزانې د ليکوال محمد هوتک په وينا د ۱۱۱۹ هـ ق کال د ذي القعدة الحرام ۲۹ مه نېټه وه.

ملي قايد و ګرګين ته د لښکرو د ټولېدو ډاډ ورکړ او هم يې بلنه ورکړه، چي د ښار دباندي د ارغسان په ده شيخ کي دي د دې لښکرو څخه ليدنه وسي. د تاريخ افغانستان پښتو ژباړي په ۲۰۷ مخ کي دا ځای د ميرويس نيکه خپل کور ښودلی دئ.

که څه هم پټه خزانه دا ډول څرګندوني نه لري، ولي سرجان مالکم، شېرمحمد او سید جمال الدین افغان په یوه خوله لیکي، چي د ښار څخه دباندي ګرګین ته مېلمستیا برابره سوې وه، چي په لړ کي به یې د قوم دوه کسه غښتلي سرداران هم ګرګین ته ور وپېژندل سي چي د حکومت سره یې ملاتړ ته تیاري ښوولی و.

ملي قاید د پردي ځواک د محوه کېدو لپاره د وخته څخه لا خپل سړي په بېلابېلو برخو کي ګومارلي وه، څو د ده د نغوتي سره سم د ګورګنیانو د هلاکېدو لپاره لاس په کار سي.

پردي واکمن په مېلمستیا کي برخه واخیسته کله چي نیمه شپه سوه د خپلو ورسره پردیو ځواکونو سره ټوله د ملي قاید په قوماندې د پښتنو تر تېغ تېر سوه.

د جهان کشای نادري لیکوال محمد مهدي لیکي، چي ملي قاید مراد خان ته د ګرګین د وژلو امر وکړ. کله چي ګرګین ووژل سو، ملي قاید د قومي مشرانو او برابرو سوو ملي لښکرو سره د ښار پر لور مخه کړه، د دغو مشرانو په ډله کي بابو جان بابي د خپل ګڼ شمېر لښکرو سره د پلان او ورکړه سوي لارښووني سره سم د کندهار ښار د ماشور دروازې ته ځان ورساوه، دا دروازه د کندهار د زاړه ښار سهېلي دروازه وه، چي د دننه په ښار کي په دې نوم یو بازار هم شتون درلود او په دې نامه دوه کلي د ښار سهېل لوېدیځ ته پراته او د پنجوایي د ولسوالۍ سره تړاو لري.

ملي قاید د ماښام د ترغوني سره سم د پیرپایمال د غره له خوا ښار ته ځان ورساوه، نورو لښکرو هم د پلان سره سم پر ټاکلي مهال ځانونه د کندهار ښار ته ورسول، د ښار ساتونکو چي پښتانه د خپل مشر او د دوی د پوځیانو په جامو کي ولیدل دوی د خپلو ملګرو په ګومان دروازې ور خلاصي کړې، پښتانه ښار ته ننوتل د ښار په دننه کي یې پر پردیو ځواکونو باندي د تورو ګوزارونه پیل کړل، د ښار برجونه یې ونیول او دروازې یې پخپل واک کي راوستې، چا ته د تللو او وتلو مجال نه ورکول کېدی، په ښار کي پردي پوځي مشران او پوځیان په ډېره چټکي تر تېغ تېر سول.

د نورو اتلانو تر څنګ بابو جان بابي د ښار تصفیه او د غلیم په محوه کېدو او نابودېدو کي په مېړانه برخه لرله او که غور وسي، د بابوجان بابي مېړانه او سرښندنه له دې څخه څرګندېږي، چي د کندهار ښار د کور په کور او کوڅه په کوڅه کي د غلیم د منځه وړلو د اغېزمني ورتیا په پایله کي د ملي قاید له خوا د دوی د دې مېړاني او د ښار د تسخیر او لاندي کېدو او د دښمن د برجونو د ماتېدو او د ښار څخه د هغوی د ټولېدو په بدله کي ملي قاید د دې ټولو سرښندنو او د بابوجان بابي د بې ساري پوځي رشادت او ورتیاوو څخه د ستاینې او قدرداني په موخه هغوی ته د کلات د مهمي سیمي او په هماغه مهال کي د ملي پاڅون د خوځنده پالونکي او اکمالوونکي ټاټوبي حکومت ورکړ.

د همدې ملي پاڅون په پایله کي د پردیو مېشتو شل زره پوځیانو څخه د ۶۵۰۰ تنو پرته چي بلوچستان ته استول سوي وه، نور ټول یې د ښار په کلا کي دننه او زر تنه یې تر ښار دباندي د ګرګین سره هلاک او ووژل سول.

### د ښار تر تصفیې وروسته د ښار دباندي د پاتې پردي ځواک په هلاکېدو کي د بابوجان بابي ونډه:

د ښار تر تصفیې وروسته هغه ۶۵۰۰ ګرجی لښکر چي د شال او مستنګ د ټکولو لپاره ګومارل سوی و، ښار ته د راغبرګېدو سره سم د هغوی یوه برخه بیا هم د همدغه ماشور دروازې ته نژدې د بابوجان بابي او د ده

سره د ده د سرښندونکو ملي قواوو له خوا د ملي قايد ميرويس خان نيکه په لارښوونه د ښار د نورو ټاکل سوو برخو په څېر د توپونو او توپکو تر اور لاندي ونيول سوه، يوازي او يوازي ۳۵ کسه ژوندي پاته سوه، چي په دې برحه کي مصلحت هم همداسي و، څو د دغو کسانو له خوا د ګرجيانو دغه شرمناکه فناه کېدو خبر د اېران تر درباره ورسول سي.

## د ملي قايد له خوا د بابوجان بابي او نورو ملي مخورو څخه د کور وداني څرګندونه:

کله چي د ۱۱۱۹ ق کال د ذي الحجې په مياشت کي د پرديو ځواکونو د استعماري ظلم او ستم ټغر د ملي قايد ميرويس نيکه په سياسي ځراکت او د بابوجان بابي غوندي د ملي او پوځي اتلانو په سرښندنه ټول سو او د آزادۍ او خپلواکۍ د لمر څرک په راڅرګندېدو سره د ملي اختر غوندي د خوښيو څپې د کلونو کلونو اسارت څخه وروسته خپرې سوې، د همدغه ستر بري په خبرېدو سره د ليري او نژدې سيمو څخه د خوښيو د زيرو سره يو ځای ملي مشران او ورسره ډلي ډلي ځوانان په ډوهلونو او سرناوو سره ښار ته رامات سول او ملي قايد او نورو پوځي او ملي مشرانو ته يې د مبارکيو مراتب وړاندي کوله.

همدا مهال ميرويس نيکه ملي مشران او د سر ته رسېدلي جګړې اتلان راغونډ او د بابوجان بابي په ګډون يې له ټولو څخه د ملي مبارزې په تېرو سوو حماسو کي د مېړاني او سرښندني د څرګندېدو له امله هغوی ټولو ته کور وداني ووايه او بيا يې د دغو مشرانو د سرښندنو څخه د خوښۍ د ښکاره کولو وروسته د ملي وياړونو د بقا، يووالي او ورورۍ لپاره اوږده او اغېزمنه وينا وکړه، چي ورسره سم د ټولو له خوا ميرويس نيکه د ملي زعيم په توګه ومنل سو.

کله چي ميرويس نيکه د ملي مشرتوب لوړ وياړ وګاټه، د لومړنيو تصاميمو څخه يې يو هم لکه چي په مخکنيو کرښو کي مو ورته اشاره کړېده، د کلات د سيمي حکومت و چي هغه يې بابوجان بابي ته په ملي پاځون کي د هغوی د څرګندي وياړمني او اغېزمني برخي اخيستني او هلته د ده د لوړ نفوذ او ځانګړي اجتماعي موقف او برلاسي په لرلو سره هغوی ته وسپاره.

## د کلات حکومت او د خلکو په زړونو کي د بابوجان بابي محبوبيت:

کله چي د ملي قايد له خوا بابو جان بابي ته د کلات د مهمي او ارزښتمني سيمي حکومت وسپارل سو، هلته د وروستنيو جرياناتو او د بابوجان بابي سره د خلکو د ټينګو اړيکو څخه څرګندېږي، چي هغوی هلته د ټولنيزو اړيکو او ښو مناسباتو د ښه شناخت او ولس سره د ورورۍ په روحيه د منلي چلند له مخې په دې بريالی سوی و، چي د ټولو مېشتو قومونو او د بېلابېلو مهمو سړيو او کړيو سره خپلي د ورورۍ او دوستۍ اړيکي ښې غښتلي کړې او د دې اړيکو د بقا لپاره يې په هغه کچه زيار وايست، چي په وروسته کي يې اغېزمنتيا د ورايه ښکاري، لکه چي د دوی په يوه رېغ او يوه څرګنده بلنه ولس د دوی د لا سرلوړي او ښه نامه د ګټلو لپاره په زيات شمېر سرښندونکي او جنګيالي د دوی په واک کي ورکوي او خپل ژوند د دوی دلوړو اهدافو د برياليتوب لپاره د دوی په وړاندي ايږدي.

## د خپلواکۍ د له منځه وړلو لپاره د رالېږل سوو اېراني ځواکونو سره د مقابلې په برخه کي د بابوجان بابي ونډه:

کله چي اېراني واکمن دوه ځله خپل استازي کندهار ته د دې لپاره راولېږل، څو

میرویس نیکه د خپلواکۍ له نیت څخه بېرته وګرځوي، خو کله چې میرویس نیکه راالېږل سوي بندیان او پر خپل تصمیم ټینګ ودرېد، نو اېراني دربار په هرات کې پرتو ځواکونو ته دنده ورکړه، چې پر کندهار برید وکړي.

میرویس نیکه د بابوجان بابي او نورو مخورو مېړنیانو په ملتیا ۵۰۰۰ کسیز ملي پوځ راټول او دښمن ته یې د سرسختانه مقابلې په پایله کې داسې ماته ورکړه چې تر هراته یې وځغلاوه.

د اېراني واکمنو زړه نه صبرېدی، یو ځل یې بیا د تبریز د واکمن محمدخان په مشري پنځه زره کسیز ځواک ته دنده ورکړه چې پر کندهار یرغل وکړي، ملي قاید د هغوی مقابلې ته یوازې ۵۰۰ جنګیالي ورولېږل، دا ځل بیا هم اېراني ځواکونو ماتې وخوړه.

د ۱۷۱۰ م کال په نومبر کې اېراني حکامو د ګرګین وراره خسروخان ته دنده ورکړه، څو د یوه لوی پوځ په مشري پر کندهار برید وکړي، کاندید اکاډمیسین محمداعظم سیستاني (د کندهار پاځون او د اېران د صفوي دولت ړنګېدل) نومي کتاب کې د دې پوځ شمېر ۲۵۰۰۰ تنه ښودلي دي په داسې حال کې چې د خپلواکۍ لمر څرک د دباندنیو لیکوالو په حواله دا شمېر ۳۱۲۰۰ تنه ښیي.

دا لوی پوځ تر ۱۷۱۱ م پورې په فراه کې وځنډېد څو د هراته د ابدالي پوځونو یوه لویه ډله هم ورسره یو ځای سي.

اروابناد غلام محمد غبار د خسرو د لښکرو سره د ابدالیانو یو ځای کېده د هغوی مجبوریت ګڼي او لیکي چې د کرمان څخه د خسرو د تېرېدو پر مهال د دولت خان زوی زمان خان چې تر دغه ګړیه یرغمل و، د ځان ملګری کړ څو پر کندهار باندې د برید پر مهال د دوی مرسته وکړي.

کله چې اېراني ځواکونو د کندهار پر لور حرکت وکړ، د ملي لښکرو یوه برخه د پټې خزانې د لیکوال محمد هوتک د پلار داود هوتک په مشرۍ د فراه پر لوري وخوځېده تر سختې جګړې وروسته ملي لښکري د لړوالي له امله شاتګ ته اړ ایستل سوې.

ملي ځواکونو دا ځل په ګرشک کې د هلمند د رود پر غاړه د ملي قاید تر مشرۍ لاندې د بابوجان بابي او نورو مخورو جنګیالیو په ملتیا مورچې ونیولې. د خسرو لښکرو په لومړیو بریدونو کې ماته وخوړه ولي ژر یې خپلې قواوې سمبال او په دې توګه ملي لښکرو بیا ماتې وخوړه، او کندهار په ۱۷۱۲ م یا ۱۱۲۳ هـ ق کې کلابند سو، خو ملي ځواکونو سخته مقابله پیل کړه.

دا مهال د ملي قاید په لاربښوونه ترینانو او بلوڅانو چې د پښین خلکو هم ورسره ګډون درلود د شپاړس زره کسیزه پوځ په برابرولو سره یې سمدلاسه پر دښمن برید وکړ او د کندهار کلابندي یې ماته کړه.

د جان ملکم په وینا د دې لوی لښکر څخه یوازې د ۵۰۰ څخه تر ۷۰۰ تنو پورې کسان ژوندي پاته سوه.

د خپلواکۍ لمر څرک په ټینګار سره یادونه کوي، چې زموږ د لیکني اتل او د دې هېواد منلی سپاهسالار بابوجان بابی تل د ملي قاید سره په لویو او کوچنیو جګړو کې اوږه پر اوږه ملتیا درلوده، د همدې لیکني په استناد ښکاري، چې د خپلواکۍ وروسته د اېراني ځواکونو د تېرو یادو سوو پرله پسې جګړو په ډګرونو کې بابوجان بابي په زغرده برخه درلودلې او په مېړانه یې د خپلي ملي قاید تر څنګ د ملي جنګیالیو او نورو نومیالیو مشرانو په ملتیا ښه په ښکاره برخه لرله، په نره جنګېدلی او په نره په هر ډګر کې بریالی او په لوړ سر د دې وطني او هېوادنیو جګړو د صحنو څخه په ویاړ سره راوتلی دئ.

## د شاه محمود هوتک سره د بابوجان بابي ربښتيني ملتيا:

کله چي ملي قايد ميرويس نيکه تر اته کلن مشرتوب وروسته په ۱۱۲۷ ق کال کي حق ته لبيک ووايه او د ابد لپاره يې د دې نړۍ څخه مخه ښه وکړه د ده د ورور عبدالعزيز تر څو ورځنۍ واکمنۍ وروسته دده زوی شاه محمود د دربار او ولسي مشرانو له خوا د هيواد د مشر او واکمن په توګه ومنل سو، هغوی مخکي له دې چي د افغانستان يووالي او ملي پياوړتيا ته پام واړوي، ښه په نره يې په ۱۱۳۴ هـ ق يا ۱۷۲۲ م کي د ايران پر لور و لښکر کښيو ته ملا وتړله.

هغوی د نورو پوځي اتلانو تر څنګ د خپل پلار غوندي بيا هم د بابوجان بابي د مرستي په هيله و، شاه محمود د بابوجان بابي څخه غوښتنه وکړه، چي پښتانه ځلمي د اصفهان و بريد ته برابر کړي، دا چي بابوجان بابي پخپله مېنه کي د ښه نامه او ښې سابقې څښتن و، ولسونو ورته د ده د لوړ اجتماعي مقام له مخي او د قومونو سره د اړيکو د بقا او غښتلتيا له مخي په درنو کتل.

بابو جان بابي د دغو ژورو دوستانه او مهربانانه اړيکو د پاللو په برکت پر دې بريالی سو، چي د کلات د غرنۍ او پښتني سيمي د ولسونو په زړونو کي اوسي. کله چي پر همدغو قومونو او ټبرونو وګرځېد او د ملاتړ په موخه يې پر هغوی بړغ وکړ په لږ مهال کي د ۳۰۰۰ تنو ځلميانو په راغونډېدو بريالی سو.

بابوجان بابي دغه ۳۰۰۰ جنګيالي د هوتکو، توخو، تره کو او اکاخېلو په قومونو او ټبرونو کي راغونډ او د شاه محمود هوتک د لاربښوونې سره سم يې د سفر موزې په پښو او د خپل همدغه ټبرني او قومي لښکر سره د کندهار پر لوري راوخوځېد او کله چي د ملي قايد سره په جګړه ايزو ډګرونو کي مل و دا ځل د هغه د ځلمي زوی مېړني شاه محمود سره اوږه پر اوږه د اصفهان پر لور وخوځېد. (۱۱۳۵هـ ق يا ۱۷۲۲ م).

## بابوجان بابی او د اصفهان جګړې:

کله چي افغاني ځواکونه د شاه محمود هوتک په ملتيا د اصفهان ۰ نيولو لپاره د کندهار څخه د ۱۷۲۲ م کال د مارچ په لومړيو کي د اصفهان څخه د ۲۰ کليومترو په واټن ګلناباد ته ورسېدل، د تاريخونو په استناد د محمود د لښکرو په شمېر کي اختلاف شتون لري، چا د ده د لښکر شمېر د ۳۰ زره څخه تر ۴۰ زره تنو پوري ښودلی دئ، ولي کرونسيسکي دا شمېر ۲۰ زره ښودلی دئ. زياترو د ده د دښمن د لښکرو شمېر د ۵۰ زرو څخه تر ۸۰ زرو تنو پوري ښودلی دئ.

په دې جګړه کي د بابوجان بابي تر څنګ امان الله خان سلطان، سيدال خان ناصر، نصرالله خان زردشتي او د دوی غوندي نورو ډېرو مېړنيانو او مشرانو ستره برخه درلوده.

شاه محمود د جګړې دمخه د دغو ټولو پوځي مشرانو سره وکتل او په جګړه کي يې هغو ته د ناغېړيو څخه د ساتني توصيه وکړه. د قوماندانانو څخه د خالصانه جنګېدني تر ژمني وروسته سخته جګړه ومښتله، د افغاني ځواکونو مړګ ژوبله ۶۰۰۰ تنه او د دښمن شمېره د دې څخه لس چنده ښودل سوېده.

د همدغو لوړو تلفاتو په پايله کي جګړه د افغانانو په ګټه تمامه سوه. شاه محمود د مارچ پر ۱۱ مه د خپلوسردارانو او جنګي سپاهسالارانو په ملتيا د (جلفا) پر لور حرکت وکړ او د مارچ تر ۱۸ پوري يې دا سيمه هم ونيوله، وروسته يې پر فرح آباد بريد وکړ د هغه ځای ټينګه کلا او ورسره څرمه مځکي يې ونيولې. په دې توګه يې اصفهان تر ګواښ لاندي راوست، او د دې ښار محاصره عملاً پيل سوه.

درې میاشتې وروسته په اصفهان کې سخته قحطي رامنځته سوه او د دغې قحطۍ په اوږدو کې د ۱۷۲۲ م کال د اکتوبر ۲۳ مه او یا په (هرات، پښتانه او ستره لوبه) کې د ښاغلي عبدالباري جهاني د لیکنې په استناد ۲۲ مه نېټه وه، چې د ایران واکمن شاه حسین د وزیرانو او درباریانو سره د شاه محمود قرارګاه ته راغلی او د سلطنت تاج و تخت يې هغه ته وسپارل.

په دې ټولو جګړو کې بابوجان بابي د ځانه لوړه وړتیا او ستره مېړانه ښکاره کړېده او هماغه مهال د ده د سرښندنې او په نره د تورو وهلو لپاره ستر القاب اهداء سوي دي.

لکه د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک چې وايي:

"په کال ۱۱۳۴ سنه هجري چې شاه محمود پادشاه د پادشاه دوران شاه حسین ورور لښکر وکاوه او اصفهان ته يې د یرغل عزیمت وکا، بابوجان بابی سره له خپلو غښتلو ځوانانو چې درې زره تنه هوتک و او توخي، ترکي او ځیني اکاخېل راغلل قندهار ته، او د شاه محمود سره ولاړل اصفهان ته، په جنګو کې بابوجان بابي هسې مېړانه وکا، چې رستم دوران يې هېر کا".

د بابوجان بابي د مېړانې او په دې جنګونو کې د غښتلتیا او پیاوړتیا په اړه د پټې خزانې د دې ښکاره او څرګند بیان څخه بل اضافه څه نه سي تر لاسه کېدای.

## د ایران د نورو سیمو په فتح کېدو کې د بابوجان بابي ونډه:

د اصفهان تر نیولو وروسته شاه محمود او د ده زړه ورو جنرالانو چې په اغلب ګومان به بابوجان بابی هم ورسره ملګری و، د شېراز، ګل پایګان، کاشان، او لرستان فتحه کېده يې بشپړ کړه، چې زیاتره تاریخونو د مېړانې په څرګندولو سره د امان الله خان سلطان، او زبردست خان نومونه په ډاګه کړي دي، زبردست خان په ختټه هزاره او دا نوم شاه محمود پر ایښی و، د ده اصلي نوم محمد جان خان و.

همدارنګه د هوتکي دروې یو شمېر نورو مېړنیو لکه میر عالم خان ناصر احمد خان میاني، اسلام خان، سدو خان ناصر، سیدال خان ناصر او نورو نومیالیو د مېړانې او سرښندنې یادونې په پښتنې نارو کې د ورایه ښکارېږي.

## بابوجان بابی د طهماسب نادر، روسي پوځونو او فرانسوي توپچیانو سره په جګړو کې:

کله چې د شاه محمود تر مړینې وروسته شاه اشرف د ایران د واکمنۍ و تخت ته ورسېدی، په ایران کې يې د واکمنۍ تر سیوري لاندې سیمې یو په بل پسې د نظم او ټولنیزو اصولو، قانونیت، تفاهم، د کرکو له منځه وړلو، سولې، سوکالۍ او ګډ اجتماعي ژوند و پولو ته ورسولې.

دا مهال روسانو او ترکانو و ایران ته د حرص په سترګو ور وکتل، او ورسره جوخت يې د شاه اشرف واکمنۍ ته ستونزې وزېږولې.

د بلي خوا د کندهار څخه د افغاني ځواکونو د لېږدولو لړۍ پرې او درېدلې وه.

تښتېدلي او بېچاره صفوي شهزاده طهماسب او په ځنګلونو کې فراري غل نادر په یوه عجیبه او غریبه توګه سمدستي او د توقع خلاف د قوي توپخانې او بې ساري بډایي خزانې څښتنان او د شاه اشرف په وړاندې يې په پوځي خوځښتونو پیل وکړ.

په تهران، سمنان، زرقان، شېراز، مهمان دوست او د اصفهان په شاوخوا او نورو ګڼو سیمو، ښارګوټو، غرونو درو او ډګرونو کې په ظاهره د طهماسب او نادر د لښکرو ولې په اصل کې د روسي پوځیانو او فرانسوي ماهرو

توپچیانو او درنې توپخانې سره په سختو او خونړیو جګړو کې د شاه اشرف هوتک تر څنګ د زبردست خان هزاره او نورو پوځي سپاه سالارانو او جنرالانو تر څنګ د بابوجان بابي، سیدال خان ناصر، اسلام خان توخي، میړانه، سرښندنه او په افغاني شهامت سره د پوځي وړتیا په لرلو سره پخپل تړوله توان د دوی درېدنه د یادونې او ستاینې وړ ده.

## د کرمان د حاکم امام وردي بېګ سره په ګرشک کې د بابوجان بابي سختې جګړې:

کله چې نادر د اېران واکمنې تر لاسه کړه، د کندهار د نیولو نیت یې وکړ، په لومړي قدم کې یې د کرمان حاکم امام وردي بېګ ته لارښوونه وکړه، چې بست او ګرشک لاندې کړي. افغاني واکمن شاه حسین هوتک بابوجان بابي دا د جګړو په ډګرونو کې تر اوسه ښه په نره ازمویل سوی قوماندان ته دنده وسپارله څو د دښمن مقابلې ته ځان او لښکر چمتو کړي، دې باتجربه سپاه سالار بیا هم خپل د ټېر جنګیالي چې په هغو کې هوتکو، ناصرو، او ترکو برخه لرله جګړې ته سوق کړه.

په ګرشک کې سخته او خونړۍ جګړه ونښته د اېراني ځواکونو قوماندان امام وردي بېګ سخته ماته وخوړه، په دې توګه یې د بابوجان بابي ځواکونو او مېړنیو جنګیالیو ته پښې ټینګې نه سوای کړې او د بابو جان بابي لښکرو هغوی تر ډېره وځغلول.

## بابوجان بابي د بست د حاکم په توګه:

بابوجان بابي د بست تر سختې جګړې وروسته چې هلته یې مېړانه او بشپړه سرښندنه ښکاره کړې وه، د واکمن له خوا د بست د حاکم په توګه وټاکل سو.

دا مهال هم بابوجان بابي د بست د کلکې کلا څخه په سرښندنه او هیوادپالنه سره ساتنه وکړه، کله چې په را وروسته کې د نادر لښکرې د ملخو غوندې راماتېږي، او د کندهار شاوخوا لیرې او نژدې سیمې نیسي بابوجان بابي لا ژوندی دئ.

## د بابوجان بابي وروستۍ ورځې:

د خپلواکۍ د لمر ځرک په حواله کله چې نادري ځواکونه د کندهار تر سیمې رارسېږي، او دلته بېلابېلې سیمې تر خپلې ولکې لاندې راولي، بابوجان بابي دا د جګړو او مرکو د ډګرونو اتل د وروستۍ نامرده ورځې په مصداق د نادر په منګولو کې ښکېلېږي او بیا یې برخلیک په یقیني ډول نه دئ څرګند. چې د هغه له قهره ژوندی پاته سو که یا؟ که د یوه بل روایت له مخې چې د لوی احمدشاه بابا په واکمنۍ کې د بابوجان بابي په ګډون یوولس تنه د دین محمد خان بابي سره یو ځای د مقصودشاه په غره کې د صفدر کارېز په حدودو کې ووژل سوه نو د نادر له خوا به هغه ژوندی پرېښودل سوی وي.

## د بابو جان بابي په بېلتون کې د کندهار ښار سقوط:

کله چې د بست او زینداور کلاوو سقوط وکړ او د سردار بابوجان بابي او امیرالامراء بهادر خان اندړ اړیکې د کندهار دواکمن سره وشکېدې، د همدې لامل او یو شمېر نورو عواملو پر بنسټ شاه حسین هوتک په ښار کې یوازې سو، د ده سیاسي او پوځي مشاورین او نوموتي جنرالان د ده د نېغې ملګرتیا څخه لیرې وه، همدا کمی د نورو ستونزو سره یو ځای سو او د ښار د یوې کلنې کلابندۍ د پای ته رسېدو لپاره واکمن په ۱۱۵۰ هـ ق کال د سپین ږیرو او مشرانو په کاروان سره و نادر ته د جنګ د پای ته رسېدو خبر ورکړ.

پاته په (۸۰) مخ کې

ليکوال: څېړنيار رحمت الله هوتک
دعلوموااکاډيمۍ غړی

# د هوتکو په دوره کې فرهنګي هڅې

په لسمه پېړۍ کې د هرات تېموري حکومت له يوې خوا د خپل منځي اختلافونو، شخړواو جګړو او له بلې خوا د بهرنيو يرغلونو په نتيجه کې رانسکور شو، چې له همدې امله علمي او فرهنګي بهير هم له ستونزوسره مخامخ شو. دغه مهال زموږ هېواد د وخت د دريو سترو سيمه يزو ځواکونو تر منځ وېشل شوی و، چې لوېديځې خواوې د ايراني صفوي حکومت، شمالي برخې د ماوراالنهر د خانانو (ازبکانو) اوختيځې برخې د بابريانو (هندي مغولو) تر ولکې لاندې وې. د هېواد نامتو ښارونه لکه: هرات، بلخ، کندهار او نور چې د ديني علومو او نورو فنونو (هنرونو) د زده کړې ستر مرکزونه وو، خپل علمي او تعليمي حيثيت له لاسه ورکړ او پر ځای يې سمرقند، ډيلي، اګره او اصفهان د علم، فرهنګ او مدنيت مرکزونه شول.

زموږ د هېواد زيات شمېر پوهان، اديبان، خطاطان، انځورګران او نور دغو مرکزونو ته بوتلل شول او زموږ هېواد خپل علمي او فرهنګي ځواک له لاسه ورکړ. دې ناوړه حالت لږوډېر دوې پېړۍ دوام وکړ، چې د دوولسمي هجري پېړۍ په لومړنيو (۱۱۱۹ه ق ) کې د ميرويس خان نيکه په مشرۍ په کندهار کې د يو ملي افغاني حکومت په جوړېدوسره يو ځل بيا زموږ په هېواد کې د علم او فرهنګ زړی په زرغونېدو شو[۱].

د هوتکو غورځنګ او واکمني د افغان ولس له وياړونو په ډک تاريخ کې هغه ځلانده ځېرکی دئ او له ځانه يې داسې وياړونه او يادونه پرې ايښي، چې تل به ژوندي او زموږ راتلونکي نسلونه نسلونه به پرې وياړي.

زه غواړم د افغان ولس د ژغورونکي ملي نهضت (د هوتکوواکمنی) پر فرهنګي هڅو لنډه رڼاواچوم، هوتکو نه يوازي د خپلي واکمنۍ پر مهال بلکې د تاريخ په بېلابېلو پړاوونوکي د هېواد او آزادۍ سره مينه په مبارزه او له فرهنګ سره مينه يې د زړه په وينه پاللې ده. دوی پخپله سيمه کې پياوړي پوهان اوهغه د خوشحال خان په اصطلاح د دستارسرې درلودل، ځکه خو يې سيمه د مشاهيرو او نومياليو زانګوبللی شو، چې له دغو نوميالوڅخه د ځينو يې يوازې نومونه رااخلم لکه :

باباهوتک، ملکيارهوتک، شاه حسين هوتک، شاه محمود هوتک، نازوانا، جانان هوتک، شېرمحمدهوتک، ملا الف هوتک، عبدالرحيم هوتک، ملاخيرالله هوتک، يحيی خان هوتک، محمدخان هوتک، ابراهيم هوتک، اسماعيل هوتک، عبدالغفور هوتک، عبدالقادرخان هوتک، يارمحمدهوتک، يوسف خان هوتک او نور ...[۲].

موږ که د هوتکوپر دوره باندې خبرې کوو، واردواره مو د ميرويس خان نيکه وتلي کارنامې د دغه دور د يوې غوره څېرې په توګه ذهن ته لاره کوي او له شک پرته د ميرويس خان نيکه نوم موږ ته د افغان ولس د مقاومتونو هينداره ګرځي.

د هوتکوتر مشرۍ لاندي ملي غورځنګ د افغان ولس د ملي حیثیت د اعادې تر څنګ فرهنګ ته هم ځانګړې پاملرنه درلوده، ځکه د هوتکو کورنۍ په دې پوهېده، چې د یوحکومت د ملي او سیاسي بنسټونو په پیاوړتیا کي فرهنګي هڅي هم حیاتي ونډه لري.

د دې کورنۍ ډېرو غړو له فرهنګ سره ځانګړې مینه درلوده، د میرویس خان نیکه مور نازوانا، د ده زوی شاه حسین هوتک او لور بي بي زینبه ټول شاعران وو.

د هوتکو په واکمنۍ کي چي کوم کارونه پښتوته شوي دي، د پښتو ادب په تاریخ کي خورا ارزښتناک ځپرکي جوړوي[۳].

حاجي میرویس خان هوتک د پښتنولومړی مشر دئ، چي په چارو کي یې د رحمان بابا له روحانیته مرسته غوښتې او لکه څر پښتانه چي رحمان بابا ته عقیده لري، ده هم په ستونزمنو ملي مسئلو کي رحمان بابا ته ورتلله، په دې اړه د پټې خزانې لیکونکي د غنیي پلار له خولې داسي لیکلي دي، چي یوه ورځ یې په خپلو ملي مقاصدو کي د رحمان بابا دیوان خلاص کاهسې شعرونه و:

زه مکتوب غوندي په پټه خوله ګویا یم
خاموشي زما زړی کاتر غـــــــا زما

کښت د عشق په توده څمکه امان چیری
سمندر بویه چي زیست کا په صحرا کي[۴]

له دې شعره دا! جوتیږي چي حاجي میرویس خان هوتک که د پښتنو د ویښ والي سره مینه درلوده، پښتو هم ورباندې ډېره ګرانه وه او د پښتو شاعرانو قدر یې کاوه.

دغه راز د حاجي میرویس خان هوتک په اولادونو کي د ده بو زوی شاه حسین هوتک چي په عالم او مدبر پاچا و دربار ته یې علماوو، شاعرانو او فضلاوو لاره درلوده.

هوتکو په چي د افغانستان د فرهنګي ودې او په زیاته د پښتني فرهنګ د ودې په اړه تر سره شوي، د ده د حکومت په دوران پورې اړه لري، دغه راز ویل کېږي، چي د کندهار په پاچاهي ارګ کي چي د نارنج ماڼۍ یې بلله، د پاچا په ځانګړې پاملرنه کتابتون جوړ شوی و او په دې کتابتون کې به په اوونۍ کي یو ځل ادبي مجلس جوړېده[۵].

د شاه حسین هوتک په دربار کې د ادبي مجلسونو جوړېدل، د علماوو ټولېدل، د آثارو پر ایجاد او تالیف د انعام او صلې ورکول ټول هغه څه دي چي د پښتنوپه تاریخ کي د هوتکوله خواپیل شوي دي.

د میرویس خان هوتک شاعره لور بي بي زینبه د هوتکو د شاهي کورنۍ بله نومیالۍ باتوره او فرهنګیالۍ مېرمن وه، چي د محمد هوتک په قول عالمه، فاضله او دینداره ښځه وه، چي علوم یې له ملا نورمحمد غلجي څخه لوستي وو. بي بي زینبې د پښتواو پارسي شاعرانو دېوانونه هم لوستل او په خپله یې هم د شعرویلو ښه وړتیا درلوده[۶].

دلته د بي بي زینبې د هغې مشهوري ویرنې یوه برخه د بېلګې په توګه رااخلم:

ږغ سو چي وروروتېر له دنیا ســـونا
قــــــندهار واړه په ژړا ســـونا

زړه مي په ویر کي مــبتلا ســـونا
چې شاه محمود له ماجلا سونا[۷]

دغه راز د هوتکو د واکمنۍ په دور کي یو زیات شمېر حماسي هم تر سترګو کېږي، چي په هغوکې ډېره ارزښتناکه حماسه د ریدي خان مومند نظم کړې (محمودنامه) ده، چي په دې کتاب کي د حاجي میرویس خان او شاه محمود هوتک د جنګونو کیسې بیان شوي دي، چي په بېلګه کې یې د هغې مثنوي یوه برخه رااخلو، چي د

ګورګین د وژلو او کندهار د آزادۍ واقعه څرګندوي لکه:

..........

دښمن قوي دی راسئ کړئ اتفاق
ځان موچمتوکړئ لېږي کاندئ نفاق

په کندهار کي يې راټول کړل خانان
ټوله د قوم اختيارداره مشران

هر قوم ورکړله ځوانان توريالي
ټول وو غښتلي تنګيالي جنګيالي

سل زره جمع سول په منځ کي د ښار
ګرده ولاړ وه د ميرخان په ګفتار

چي داسي کار وکا حاجي ګرندي
د پښتنو ناموس يې وکا خوندي

کال و يوسل نونس او زر په شمار
خلاص سو له ظلمه د ګرګين قندهار

د ظلم پای دی هسې وران عالمه
نه دی په ظلم څوک ودان عالمه

د ظلم اور چې بل سي سوځي جهان
پکښې کباب سي ستمګر ظالمان

ظالم جفا کوي په ځان نه په بل
ويني هر څوک سزا د خپل بد عمل[۸]

د دې دوران بله حماسي بېلګه چي موږ ته څرګنده ده، هغه (جګړه د محمود افغان نيول د اصفهان) نومېږي. د دې حماسې ليکوال محمدامين سر پرېکړی نومېږي.

بله حماسه چي د هوتکو د ادبي غوځنګ په اړه په راوروسته وختونوکي ايجادشوې، هغه قصه د برېښناياخدی نومېږي، د دې حماسې ليکوال د محمدامين سر پرېکړي زوی حافظ نورمحمد دئ[۹].

د هوتکو کورنۍ په ځانګړې توګه شاه حسين هوتک پخپله واکمني کي داسي فرهنګي لاسته راوړنې درلودې، چي له فيضه يې نن په ۲۱ مه پېړۍ کي د ادب مينه وال خوند اخلي او وياړ پرې کوي.

له دغو فعاليتونو څخه يو هم د دغه دربار د وتلي فرهنګي څېرې محمد هوتک له لوري د شاه حسين هوتک په غوښتنه د پټې خزانې ليکل و، چي د پښتو ادب يو ډېرمهم او ارزښتناک اثر دئ، چي د هغې له برکته د پښتو د ليکلي معلوم منظوم ادب تاريخ د دوهمي هجري پېړۍ لومړۍ نيمايي ته رسېږي. دا کتاب په هېواد او بهر کي څو ځله چاپ او خپور شوی دئ، او د خپل ارزښت له مخې په دري، انګرېزي، روسي او جرمني ژبو هم ژباړل شوی دئ. دغه راز محمدهوتک خپله د اشعارو ديوان د خلاصته الفصاحت او د طبابت په علم کې يې د خلاصته الطب په نامه پښتو آثار هم ليکلي وو، چي تر اوسه پوري زمونږ لاس ته نه دي راغلي[۱۰].

په پای کي دې نتيجې ته رسېږو، چي د هوتکو ملي غورځنګ او واکمنوپخپلو فرهنګي هڅو او لارښوونو سره د پښتو منظوم آدب عمر د لومړي ځل لپاره دوهمي هجري پېړۍ ته ورساوه او د دې تر څنګ يې د لومړي ځل لپاره ليکوالانو او شاعرانوته د تشويق په موخه بخششونه ورکړل، دربار ته د عالمانو، فرهنګيانواو ځورو بلل بل ګام و، چي دې کار زموږ زيات شمېر فرهنګيان خپلو فرهنګي فعاليتونو ته لا وهڅول او داسي يادونه يې له ځانه پرېښودل چي تر ننه پوري په درنښت يادېږي او په ياد يې يادغونډي جوړېږي، چي دا دئ نن هم د دغوغونډو د يوې درنې غونډې شاهد يو، خدای ﷻ دي وکړي چي

دا لړۍ لا دوام وکړي، بريالي اوسئ.

**مأخذونه:**


۱- هاشمي، محی الدين، د محمدهوتک ادبي شخصيت او تذکره ليکني لار، ناچاپه مقاله.
۲-اندړ، نعمت الله: زابل د مشاهيرو سيمه او د هوتکو ټاټوبی، ناچاپه مقاله.
۳- قيومي، عبدالشکور: په دريو وروستيو پېړيو کي د مقاومت په ادبياتو کي د پښتنو ليکوالو او شاعرانو ونډه، د علومو اکيډيمي، د پښتو څېړنو نړيوال مرکز، ۱۳۸۲کال،۱۵ مخ.
۴- بېنوا، عبدالرؤف: پښتو روزنه، د پښتو څېړنو بين المللي مرکز، دولتي مطبعه، ۷۷-۷۸ مخونه، ۱۳۵۷ کال.
۵- هېوادمل، زلمی: د پښتو ادبياتو تاريخ، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۹ کال ، ۲۰۴مخ.
۶- پورتني اثر، ۲۰۳ مخ.
۷-قيومي، عبدالشکور: په دريو وروستيو پېړيو کي د مقاومت په ادبياتو کي د پښتنو ليکوالو او شاعرانو ونډه، ۴۳ مخ.
۸- پورتني اثر، ۴۲ مخ.
۹-هېوادمل، زلمی: د پښتو ادبياتو تاريخ، ۲۰۴-۲۰۳ مخونه.
۱۰- هاشمي، محی الدين: د محمدهوتک ادبي شخصيت او تذکره ليکني لار.




د (۷٦) مخ پاته:

**د بابو جان بابي قبر:**

د کندهار ښار په باميزو کوڅه کي د مېشت بابي ټبر د وروستي مشر ارواښاد محمدسرور خان په وينا چي د خپلو مشرانو د څرګندونو په استناد يې داسي ښکاره کوله، چي ګواکي د کندهار پاته په (۸۰) مخ کي د زاړه ښار په سهېل کي د مجنون قيتال بابا د قبر و سر ته په نژدې واټن کي يو لوی قبر شتون لري، چي څنډې يې په لويو پخو خښتو را پورته سوي او همدا د بابوجان بابي قبر دئ، چي د څېړونکو ژوري څېړني او پلټني ته يې د پوره روښانتيا او تحقيق په موخه اړتيا سته.

**مأخذونه:**


۱. د خپلواکۍ لمر څرک، امان الله هوتک، ۱۳٦۸ ش.
۲. سل پګړۍ يو پوړنی، محمدمعصوم هوتک، ۱۳۸۴ ش.
۳. پټه خزانه، محمد هوتک، دوهم چاپ، ۱۳۳۹ ش.
۴. هوتکيان، استاد بېنوا، ژباړن: يونس مراد، ۱۳۸۰ ش.
۵. هرات، پښتانه او ستره لوبه، عبدالباري جهاني، ۱۳۸۰ ش.
٦. د کندهار پاڅون او د ايران د صفوي دولت رنګېدل، سيستاني، پښتو ژباړن: صالح محمد صالح، ۱۳۸۴ ش.
۷. ميرويس نيکه، استاد بېنوا.
۸. کابل مجله، پرله پسې ۷۱۱ ګڼه، ۱۳۵۸ ش.
۹. جغرافيايي قاموس، لومړی ټوک.
۱۰. تاريخ مختصر افغانستان، علامه حبيبي.
۱۱. افغانستان در مسير تاريخ، مير غلام محمد غبار.
۱۲. افغانستان در پنج قرن آخر، مير محمدصديق فرهنګ.
۱۳. کابل مجله، پرله پسي ٦۹۴ ګڼه، ۱۳۵۷ ش.




څېړنیار فریدالله نوري

د افغانستان د علومو اکاډیمي

# د هوتکیانو د سیاسي واکمنۍ د رامنځته کېدو اړتیا

١٦ مه زېږدیزه پېړۍ د افغانستان لپاره، د بدبختۍ او له غمیزي ډکه پېړۍ وه. په دغه وخت کي افغانستان یو داسي مشرتابه ته ضرورت درلود چي په خواشینۍ سره باید ووایم چي، دغسي رهبري تر دې دمه نه تر سترګو کېده. افغانستان هغه مهال د تجزیې او وېشل کېدو په حال کي معلومېده. افغانستان له درېو لوریو د سترو زورواکانو له خوا د جنګ او جګړو ډګر ګرځېدلی و.

د هېواد شمال په ماوراء النهر کي د شیبانیانو دولت په ۱۵۰۰ زېږدیز کال کي، په لوېدیځ کي د ایران صفوي دولت په ۱۵۰۲ زېږدیز کال کي او په ختیځ او سهېل ختیځ کي د هند د بابریانو حکومت په ۱۵۲۵ زېږدیز کال کي منځ ته راغلل. دغو یادو شویو درېو هېوادونو د افغانستان شمال، سهېل او سهېل ختیځ او لوېدیځو سیمو ته د خپل تېري لاسونه اوږده کړل او په پایله کي یې افغانستان پر درېو برخو یاني شمالي، شرقي، جنوبي او غربي برخو ووېشه او دغه سیمي یې تر خپلي ولکې لاندي راوستلې. دغه د بدبختۍ دوره او د افغانستان وېش له ۱۵۰۶ زېږدیز نه تر ۱۷۰۸ او ۱۷۱۶ زېږدیزو کلونو پوري په لوېدیځو برخو او تر۱۷۴۷ زېږدیزو کلونو پوري وه، د افغانستان ختیځي او شمالي برخي په دغسي حالاتو کي ګیر پاته وې او په هېواد کي دغي د بدبختۍ دورې نژدې دوې نیمي پېړۍ ونیولې.

په دغه موده کي د افغانستان دولت یوه مرکزي اداره نه درلوده، د هېواد اقتصاد او پوهني سیستم نه و موجود، د هېواد سیاسي حالات هم د درېو دښمنو دولتونو له خوا له منځه تللی وو. هاغه مهال دا خطر هم ډېر تر سترګو کېده چي افغانستان د تل لپاره پر درېو برخو ونه وېشل شي. ځکه چي درېو واړو هېوادونو پیاوړي حکومتونه درلودل او د افغانستان ډېري سرحدي برخي یې داسي سره راخپلي کړې وې چي داسي یې ګڼله چي نوموړي سیمي د هغوی له مرکزي دولت نه لیري پرتې سیمي وي. له دغو سیمو به یې مالیه اخیستله او د هغوی د جنګیالیو او واکمنانو لګښت او مصارف یې ترې اخیستل.

افغانستان او د دې هېواد مېشت وګړي، په هغه وخت کي یوازي د دې هېوادونو د جنګیالیو، وسلو او جنګ جګړو پرته هیڅ لاسته را نه وړ، بې له دې چي تاوانونه او زیانونه یې ور په برخه شول او بس په پټه خوله به یې د دوی په خپلمنځي زور آزمویني او جنګ جګړې لیدلې.

په دغه دوره کي د افغانستان د نورو سیاسي، ټولنیزو او اقتصادي چارو په له منځه تلو سره سره، فرهنګي چارې هم د

له منځه تلو په حال کې وې. لوی ښارونه ورو - ورو او ورځ په ورځ په وړو کليو او باندو بدلېدل. ځکه چې، دا سيمې د يرغلګرو ليري پرتې سيمې وې او لوی ښارونه او ستر مرکزونه هاغه مهال په بخارا او سمرقند، اصفهان او ډيلي کې ول.

د دغې دورې بدبختۍ له سياسي پلوه تر ١٨ مې پېړۍ او له اقتصادي او فرهنګي پلوه تر شلمې پېړۍ پورې دوام وموند او پايله يې دا وه چې هېواد له هغو ټولو هېوادونو نه وروسته پاته و کوم چې، په دغه پېړۍ کې د پرمختګ او ودې پر لور روان وو.

دغه د سياسي بدبختۍ دوره، په هېواد کې له درېو لوريو په ډېره چټکۍ سره روانه وه. کله به بابريان تر کابله او غزني پورې ورسېدل او کله به بيرته د شيبانيانو او يا صفويانو له خوا پر شا ولاړل. کله به شيبانيانو هرات ونيو او کله به شا تګ ته مجبور کړای شول.

د ايران صفوي دولت چې، په ١٥٠٢ زېږديز کال کې د شاه اسماعيل صفوي له خوا اساس کښېښودل شو، په ډېره لږه موده کې يې وکولای شول چې د مذهبي اړيکو په رامنځته کولو سره ټول ايران ته يو سياسي او مذهبي يووالی وبخښي. هغه لږکيو مذهبي ډلو چې ورسره به يې مخالفت کاوه، هغوی به يې وژل او يا خو به يې له وطنه ليري شړل.

شاه اسماعيل د اتو کلونو په موده کې عراق، عجم او فارس ونيو او په ١٥١٠ زېږديزکال کې يې افغانستان ته مخه کړه په لاره کې يې د طوس، مشهد او سرخس ښارونه ونيول او د شيبانيانو لښکر ته يې په مرو کې ماتې ورکړه له هغې وروسته يې هرات ونيو او همداسي يې د افغانستان شمالي سيمې له شيبانيانو څخه ونيولې.

همدارنګه د دغو جنګونو لړۍ له لوېديځ نه تر شماله او له شمال نه تر لوېديځ او سهېله پورې دوام درلود. شاه اسماعيل په کال ١٥٢٣ زېږديز کې ګرجستان ونيو او پوره يو کال وروسته په ١٥٢٤ زېږديز کال کې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

له هغه وروسته د هغه زوی طهماسب هم د خپل د پلار پر پله پل کښېښود او له خپلو شمالي او شرقي سيالانو سره د لا زياتو سياليو په موخه ميدان ته راووت او د هغه جوړجاړي له امله چې يې د هند د بابري دولت سره وکړ، کندهار ښار يې ونيو.

نژدې يوه نيمه پېړۍ په دغو جنګ جګړو او د هېواد په بدبختۍ کې تېره شوه او دغه کلونه لاهم پسې زياتېدل خو هيڅکله هم په دغه څه د پاسه يوه نيمه پېړۍ کې، داسې يو څوک پيدا نه شو چې د افغان مظلوم ولس يې د پرديو له زور زياتي او ظلم نه راکښلی وای. ټول ولس د دې ورځې په تمه و چې کومه به هغه ورځ وي چې غمځپلی ملت له دغه پردي اسارت نه خلاص شي.

دغه د زور او ظلم لړۍ ته هغه چا بايد د پای ټکی ايښی وای، هم دغه ملت يې له زور واکانو او يرغلګرو نه ژغورلی وای ، آزاده او سرلوړی ملت يې جوړ کړای وای، د افغانستان د دفاع او ساتنې په لاره کې يې هڅې کړې وای او يو خپلواک افغانستان يې په نقشه کې راکښلی وای هغه هم په دغو جنګ جګړو کې دنيا ته نوي سترګې وغړولې او دا شخص ميرويس خان هوتکی و.

میرویس خان هوتکي په ۱۶۷۳ زېږدیزکال کي نړۍ ته سترګي وغړولې خو هغه هم دخپلو پلرونو اونیکونو په څېر د پردیو زور زیاتي، ظلم او استبداد د سر په سترګو کوت او ان دا چي د ژوند یوه ارزښتناکه برخه(ځواني) يې هم د جنګ په سرو لمبو کې تېره کړه.

میرویس خان هوتکي هاغه مهال چي د ځوانۍ عمر يې په سرو لمبو کي تېراوه، په دغه موده کی غلی پاته نه شو او د آزادۍ او خپلواکۍ په لاره کي يې نه ستړې کېدونکي هلي ځلي وکړلې او دغه لاره يې هم د ژوند تر پایه پوري غوره کړله. که څه هم هغه هاغه مهال په سوداګرۍ بوخت و، خو د خپل ملي هویت د ساتلو او بربادۍ نه د ژغورلو په نیت يې هر وخت دا کوښښ کاوه چي ټولي قبیلې سره یو کړي او د دښمن په وړاندي ودرېږي، خو دغه کار ورته له ډېرو ستونزو ډک و، ځکه چي یرغلګرو له پېړیو پېړیو راهیسي داسي د نفاق تخمونه نه وو شیندلي چي ده ورته دومره ژر د پای ټکی ایښی وای.

خو هغه تل دا کوښښ کاوه چي داسي یوه موکه په لاس ورشي چي، دی دغه ټولو ستونزو ته د پای ټکی کښېږدي او د دښمن په وړاندې ودرېږي. له دې امله میرویس خان د خپلو هڅو په لړ کي د صفوي واکمن حکومت تر حکومتي پوړیو پوري ځان ورساوه او ان تر دې چي د حکومت واګي يې هم د یو څه مودې لپاره په لاس کي واخیستې خو دا هم ده ته یوه کوچنی کار ښکارېده ځکه چي د ده په خیال او فکر کي د آزادۍ او تلپاته خپلواکۍ مفکوره وه او له هېواد نه د یرغلګرو د ټغر ټولولو په تکل کي و، چي یو آزاد او خپلواک دولت ولري.

هغه ستونزي چي لا میرویس خان ته هواري شوي نه وې، هغه هم د دیني روحانیونو او مذهبي کسانو سره د پردیو نه د خلاصون لپاره تفاهم ته د رسېدو ستونزي وې. صفوي دولت پخپله څه کم دوو پېړیو کي د دیني روحانیونو خولې داسي پټي کړي وې، چي هیڅکله يې د میرویس خان خبرو ته غوږ نه نیوه. دیني مشرانو ته داسي ښودل شوې وه، چي صفوي دولت یو مسلمان دولت دئ او د دوی په وړاندې پاڅون او درېدل د مسلمانانو تر منځ ورور وژنه او وینه تویونه ده او مسلمانان باید پخپلو منځونو کي جنګ جګړې ونه کړي.

خو میرویس خان هوتکي پخپل مدبرانه سیاست سره د دې ستونزي د حل لاره هم پیدا کړه. هغه هم، د هغه بیت الله شریف ته د حج د فریضې د ادا کولو لپاره تګ او له عربو مسلمانانو نه د یوه ظالم حکومت نه د مظلومو مسلمانانو د ژغورلو فتوا وه، چي هغه دغه فتوا او اجازه لیک د حجاز د سترو دیني عالمانو نه تر لاسه کړ. له سعودي عربستان نه د بیرته راتګ پر مهال په اصفهان کي تم شو. خو هغه څه چي، ده د آزادۍ د ګټلو لپاره کړي وو، هغه د ده په مدبرانه سیاست پوري اړه درلوده. هاغه هلي ځلي چي ده پخپل ژوند کي کړي وې هغه ورته بې ثمره پاته نه شوې. د صفوي حکومت نه ورته دغه موکه په لاس راغله چي ده ته د کندهار د حکومت چاري وسپارل شي او د ټولو قبیلو او قومونو ریاست ورته ورکړل شي.

ده له همدې موکې نه په ګټې پورته کولو سره، له هري لاري خپلي هڅې ګړندۍ کړې، دینې علماوو ته يې د حجاز د مسلمانانو اجازه لیک او فتوا وروښودله

او هغوی یې هم د مبارزې په لاره کې له ځانه سره مله کړل او د قوم مشران یې هم له پخوا نه د ځان سره ملګري کړي وو.

دوی په ډېره کمه موده کې داسې یو پلان جوړ کړ، چې د هغه له مخې باید په ډېره لږه موده کې د صفویانو ټغر له کندهار او بیا له نورو سهېلي او سهېل لوېدیځو سیمو نه ټول کړي، چې وروسته همداسې وشو.

په ۱۷۰۹ زېږدیز کې په مانجه نومې سیمه کې چې د کندهار د شمال ختیځ په ۳۰ میلي کې پرته ده، لویه جرګه راوبلله. په دغه جرګه کې د قومونو او قبایلو استازو او دیني علماوو ګډون درلود. د جرګې په پای کې ټولو په یوه خوله هوکړه وکړه چې د صفوي دولت په وړاندې به درېږي او د قومونو مشرانو او د جرګې غړو، میرویس خان هوتکي خپل مشر وټاکه.

تر دې وروسته چې افغانان یو لاس او یو موټي شول، سملاسي یې د ایران صفوي دولت د واکمنۍ ټغر له کندهار نه ټول کړ او هغه صفوي واکمن چې ګرګین نومېده هغه یې له خپلو ټولو عسکرو سره له منځه یووړ. تر ډېره وخته پورې صفوي دولت په ایران کې هم له دې پېښې نه خبر نه و.

که څه هم، هاغه مهال کندهار د صفوي حکومت له واکه وتلی و خو میرویس خان هوتکي چې تل یې په خیال کې د یو واحد او له پردیو پاک او آزاد افغانستان د جوړښت فکر و، خپلو هڅو ته لا دوام ورکړ او د کندهار د دفاع او ساتنې لپاره یې پوره پوره تیاری ونیو.

میرویس خان هوتکي د کندهار ښار له نیول کېدو وروسته، یو لیک د هند د بابري دولت په نامه ولېږه، چې په هغه کې د بابري دولت سره د اعتماد او د صفوي دولت سره د مخالفت خبره شوې وه. همدا راز یو لیک یې د صفوي دولت په نامه ولېږه چې په هغه کې یې داسې لیکلي و: "هغه مهال چې، زه په کروندو او کښت کې بوخت وم وامې وریده چې، خلکو چې، د ګرګین او د هغه د سرو له زور او زیاتي نه ډېر په تنګ راغلي وو د هغه د ظلمونو په وړاندې پاڅون وکړ او هغه یې له خپلو کسانو سره وواژه له هغې پېښې وروسته یې زه خپل مشر وټاکلم".

میرویس خان په دې پوهېده چې صفوي حکومت به په دې اړه غلی پاتې نه شي، خو هغه لیک د دې لپاره واستاوه، تر څو هغه د هغوی د یو ناڅاپي حملې مخه ونیسي. میرویس خان یوازې دا غوښتل چې په دغه کار سره یوه موکه په لاس راوړي تر څو د کندهار د دفاع لپاره پوره تیاری ونیسي.

په ۱۷۱۰ زېږدیز کال کې د محمد خان په مشرۍ صفوي لښکر چې شمېر یې ۱۰۰۰۰ تنو ته رسېده د جنګ په موخه کندهار ته واستول شو، تر څو کندهار ښار ونیسي. خو د هېواد د مبارزینو په مېړانه او د میرویس خان په ځیرکتیا سره صفوي لښکر د ماتې سره مخ شو. تر څو کالو پورې څو څو ځله صفوي دولت کوښښ وکړ چې کندهار ونیسي خو بیا هم د تېر په څېر د ماتې سره مخ شول.

تر ۱۷۱۵ زېږدیزو کلونو پورې میرویس خان هوتکي وکولای شو، چې د یووالي غړ تر فراه، غزني ، زابل او نورو افغاني سیمو پورې ورسوي او هغه په آسانۍ سره وکولای شول چې ملي یووالی د ټولو قومونو او قبیلو تر منځ راولي او د دغو سیمو آزادي له پردیو نه واخلي.

میرویس خان نیکه که څه هم ډېر څه یې په کمه موده کې وکړل، خو هغه پلان چې، هغه درلود د ده د یو ناڅاپي مرګ له امله نیمګړی پاته شو او د ده په ژوند کې پلی نه شو. نوموړی په کال ۱۷۱۵ زېږدیز کې له دغې فاني نړۍ نه سترګې پټې کړې. ( ارواه دې ښاده وي)

د میرویس خان هوتکي تر مړینې وروسته، د جرګې مشرانو د هغه ورور میر عبدالعزیز د کندهار حاکم وټاکه خو د یوه کال حکومت وروسته د خپل وراره میرمحمود له خوا ووژل شو او جرګې دا ځل د میرویس خان هوتکي زوی شاه محمود د کندهار حاکم او خپل مشر وټاکه.

د شاه محمود د ټاکل کېدو سره سم د هرات صفوي حکمراني هم د عبدالله خان ابدالي له خوا چې د خلکو ملاتړ ورسره و، له منځه لاړه او په ډېره لږه موده کې یې د هرات ولایت او شاو خوا سیمې د هغوی له ولکې پاکې کړې.

تر ۱۷۲۱ زېږدیز کال پورې د ایران صفوي دولت هم خورا ډېر فاسد شوی و او خلکو د هغوی له زور زیاتي نه سر ټکاوه او ناراحته ول. نور نو خلک د هغوی د ډېر ظلم او زیاتي څخه تر پزې رسېدلي وو او ان دا چې غوښتل یې د صفوي حکومت په خلاف پاڅون وکړي.

له بلې خوا چې شاه محمود له خپل جغرافیایي قلمرو نه ډاډه شو، نو د افغانستان د سیاسي یووالي او اتحاد په فکر کې شو. شاه محمود د سیاسي یووالي د راوستلو لپاره د ایران حکومت ستر ګواښ باله، نو د ایران د صفوي حکومت د نسکورېدا لپاره یې جنګي تیاری ونیو او د ایران پر لور وخوځېد. د اتو میاشتو کلابندۍ وروسته یې د اصفهان ښار چې، د صفوي حکومت پایتخت و ونیو او خپل پایتخت یې د اصفهان ښار وټاکه او خپل ورور میر حسین یې د کندهار د واکمن په توګه یاد شوي ښار ته ولېږه. همدا رنګه هوتکي دولت په ایران کې وکولای شول چې د هر ډول کورنیو او بهرنیو مخالفتونو په وړاندې ودرېږي او په پوره زړه ورتیا سره یې دغه مخالفتونه له منځه یوووړل.

د هوتکي پاچا شاه اشرف په وخت کې افغان هوتکي دولت د ترکیې د عثماني دولت په وړاندې چې د ایران نیول یې غوښتل، سخته جګړه وکړه او په دغه جګړه کې افغان جنګیالي په ډېره مېړانه وجنګېدل او د دې جګړې ګټونکي افغانان شول. تر دې جګړې وروسته د ترکیې عثماني خلافت افغان هوتکي دولت د یوه مسلمان دولت په توګه په رسمیت وپېژانده.

د دغې دورې مهمه پېښه د افغان دولت د روسیې دولت سره د یوې سیمې پر سر وه چې په پای کې د روسیې دولت د جنګ نه لاس په سر شو او د سولې لاره یې غوره کړه، چې په حقیقت کې دغه سوبه هم د افغانانو په ګټه تمامه شوه.

دغه ډول افغان هوتکي دولت پخپله شل کلنه دوره کې، د ایران د ولس سره ښه چلن وکړ او هغوی ته یې په حکومت کې ښې ښې دندې وسپارلې. د دغې تحلیلي مقالې عمده ټکي زه د پایلې په توګه په لاندې ډول بیانوم :

۱. ۱۶ مه زېږدیزه پېړۍ د افغان ولس لپاره د بدبختیو او له ستونزو ډکه پېړۍ وه. جنګ – جګړې، ظلم، وحشت او دحشت، د مالیې ټولولو بې حده کچه، زور او زیاتی پر افغان ولس د پردیو

له خوا دې حد ته رسېدلی و، چې د افغانانو صبر او زغم نور پای ته ورسېد او هغه د خپلواکۍ مبارزې چې لا تر دې وخته پټې رواني وې، یو ځلي بیا اصیل رنګ واخیست او د میرویس خان هوتکي په مشرۍ هوتکي دولت منځ ته راغی چې وروسته پر پښو ودرېد او یوه ډېره لویه جغرافیاوي سیمه یې پخپل قلمرو پورې وتړله.

۲. میرویس نیکه په ډېره لږه موده کې وکولای شول چې په افغانستان کې سیاسي یووالی، اتحاد او اتفاق منځ ته راولي. د میرویس هوتکي له کړنو څخه یو هم د افغانستان په معاصر تاریخ کې د آریایي جرګه ګیو دود نوي کول و. هغه پخپله دوره کې وکولای شو چې جرګې او جرګه ګۍ یو ځلي بیا د تېر په څېر د افغانانو دود وګرځوي.

۳. هوتکي دولت په ډېر لږ وخت کې وکولای شول چې په افغانستان کې سیاسي ثبات راولي او په ډېره مېړانه یې د ایران صفوي حکومت له منځه یووړ او هوتکي دولت یې هلته ټینګ کړ.

۴. هوتکي دولت په معاصر تاریخ کې د افغانستان لپاره یو بل ویاړ هم وګاټه، هغه هم د عثماني دولت په وړاندې چې په سیمه او نړۍ کې یوستره امپراتوري وه جګړه او د هغې ګټل و.

۵. هغه مهم او د پام وړ ټکی چې د دې لیکنې پایله جوړوي، هغه د هوتکي دولت واکمني په ایران او د خلکو سره سم چلن دئ. هوتکي دولت پخپل حکومت کې ایراني مشرانو ته ښه ښه منصبونه ورکړل او له هغوی سره یې ښه سلوک کاوه. خو کله چې، ایرانیانو د کندهار او شاو خوا سیمي یې په لاس کې وې په خلکو یې ظلمونه کول او ان دا چې د نادر افشار په وخت کې چې کله نوموړي، د کندهار ښار ونیو هغه یې وسوځاوه او د خاورو سره یې خاوري کړ. خو افغانانو هیڅکله د اصفهان په ګډون چې د صفوي دولت پایتخت هم و، د ایران یو ښار هم وران نه کړ او د سوځولو تصور خو ورسره هیڅکله هم نه و، چې دا کار په ۱۶ مه پېړۍ کې د افغانانو هغه اوچته حوصله او لوړ فرهنګ ښیي کوم چې لا د پخوا څخه یې د ایرانیانو په پرتله درلود.

**اخځونه:**


۱. افغانستان در مسیر تاریخ، غلام محمد غبار، کابل، سال ۱۳۷۰ هـ . ش.
۲. تاریخ افغانستان در عهد ګورګان هند، علامه حبیبي، سال ۱۳۴۱ هـ . ش.
۳. تاریخ سیاسی واجتماعی ایران، سعید نفیسی، ایران، سال ۱۳۳۵ هـ . ش.
۴. افغانستان در پنج قرن اخیر، میر محمدصدیق فرهنګ، کابل، سال ۱۳۸۰ هـ . ش.
۵. تاریخ مختصر افغانستان، عبدالحی حبیبي، کابل، سال ۱۳۷۷ هـ . ش.




عبدالظاهر شکیب
د افغانستان د علومو اکاډیمي

# د هوتکي دورې دوې نومیالۍ او ادیبې مېرمنې

ښځه په پښتنو کي د قدر او درنښت وړ او د ډېر زیات احترام په سترګه ورته کتل کېږي، هر څوک ورته په قدر او احترام یو شان قایل دي، ښځه ده چي پخپله پاکه او سپېڅلې لمن کي یې په زرګونو قهرمانان، عالمان، شاعران او ستر ستر لیکوالان روزلي، پاللي او پخپلو پاکو شیدو یې هغه لوی کړي دي، تل یې خپلو زامنو ته د ننګ، غیرت، عزت، مېړانې، شجاعت، سربښندنې، وطن دوستۍ او د هیواد پالنې درس ورکړی دئ.

ښځه که د مور مقام ولري، نو هغه داسي د احترام، درناوي او قدر وړ ده، چي لوی او مهربان څښتن جنت د هغې تر قدمونو لاندي بللی دئ. ښځه که د خور حیثیت ولري او د خپل کور فضا یې خوندوره ساتلې وي، نو بیا د هغه خور نوم دئ، چې هر ورور یې په نامه ویاړي او په کورني ژوند کي یې د خپل ځان ملګرې بولي، خو که بیا ښځه د کور مېرمن او د یوه سړي د ژوند ملګرې وي، نو په هغه صورت کي بیا د اسلام په مقدس دین کي د کور ډېوه بلل شوې او د کور د دې ډېوې د رڼا ساتلو لپاره زیات ټینګار شوی دئ.

همدا راز د مور غېږ هغه ستره مدرسه ده، چي ډېر ستر ستر نوابغ او ډېري پیاوړي میندي او باتوري مېرمني یې روزلي او په سالمه توګه یې ټولني ته وړاندې کړي دي.

که موږ د ښځو د ژوندانه تاریخ ته نظر واچوو، نو وینو چي بشري ټولنه داسي یوه ټولنه ده، چي هلته ښځي د نارینه وو په پرتله د اوچت مقام خاوندانې شوې دي، چي د ټولني ټول درانه اوستونزمن کارونه د دوی پر غاړه وو او ټول درانه کارونه دوی سر ته رسول، په کور او د کور څخه بهر په ټولو تولیدي، اقتصادي او سیاسي چارو کي یې برخه اخیسته.

که څه هم په پښتني ټولنه کي د ښځو ژوند د یو لړ کلتوري، ذهني او مذهبي ناوړو بندیزونو له کبله وروسته پاته او د ټولني په وده او د فرهنګ په پرمختګ کي یې د پام وړ ونډه نه ده اخیستې، خو بیا هم پښتنو مېرمنو سره له دې ټولو سیمه ییزو قیوداتو، بندیزونو او ناوړو دودونو، رسمونو او رواجونو تل په ادبي فعالیتونو کي برخه اخیستې، خپل ملي، ټولنیز او تاریخي رسالت یې په ښه توګه سر ته رسولی او د نارینه وو تر څنګ یې په ګډه سره د ولس معنوي پالنه او روزنه کړې ده، د مذهبي قوانینو په خپرولو او د سالمو اولادونو په روزنه کي یې مهمه ونډه اخیستې، چي په دغه ډول په پښتو ادبیاتو کي د ښځو برخه په اخلاقي او تربیوي لحاظ هم ډېره درنه ده.

د پښتو ادب په تاریخ کي هم زموږ د هیواد باتورو مېرمنو له زیاتو ستونزو سره سره لکه د نارینه شاعرانو او لیکوالانو په څېر د پښتو ادب په وده او پرمختګ کي ډېره فعاله ونډه اخیستې ده او زموږ د هیواد ښځې، مېرمني او نجوني د نارینه لیکوالو او شاعرانو څخه وروسته نه دي پاته شوي، خپل رسالت یې په ښه شان سر ته رسولی او د پښتو ادب په

بڼ کې لکه د پسرلني ګلونو په څېر ښکاره
شوي او غوړېدلي دي.

موږ پخپله دې لیکنه کې په عمومي
ډول د پښتنو مېرمنو په اړه نه غځېږو بلکې د
هوتکي دورې د دوو نامتو ادبي او علمي څېرو
(نازوانا او مېرمن زینبې) پر ادبي او علمي
ژوندانه لنډه رڼا اچوو:

**نازوانا**:

په پښتني ټولنه کې ډېري نومیالۍ
مېرمنې تېرې شوې دي، چې د خپلو نه
هېرېدونکو کارنامو په اثر یې تلپاتې ژوند تر
لاسه کړی دئ او د تل لپاره زموږ په ادبي او
ملي تاریخ کې د لمر په څېر ځلېږي، چې د
دغو تاریخي مېرمنو له ډلې یوه هم نازو انا ده.

نازو انا د سلطان ملخي توخي لور وه،
چې په ۱۰۶۱ سپوږمیز کال د (تازي) په سیمه
کې یې دې نړۍ ته سترګې پرانیستي دي.
سلطان ملخي توخي په هغه وخت کې له غزني
نه تر جلدکه پورې د قومونو او ولسونو مشري
پر غاړه درلودله او پخپلو کارونو کې
ډېر غښتلی او تکړه و، خپل استقلال او ازادي
یې پوره ساتلې وه او د خپل وخت بې ساری
مېړه و.

نازو انا د هماغه کوچنیوالي څخه د
سیمې د پښتني مېرمنو او سپین ږیرو علماوو
نه زده کړه وکړه او په لیک او لوست کې یې
ښه پرمختګ وکړ. هغه ښه زړه وره او مېړه
مخې ارتینه وه، پر مېلمنو، بېوزلو، مسافرو،
خوارانو، غریبانو، ناروغانو او اړو کسانو ډېره
مهربانه وه او ډېر ترحم او زړه سوی یې
درلوده، هغه به تل د مېلمنو مېلمه پاله وه،
همېشه به یې جامې، خواړه، څپلۍ، د اوداسه
اوبه او نور اړین شیان په کور کې چمتو کول،
تر څو یې د ضرورت پر مهال اړو کسانو ته
ورکړي.

پټه خزانه وایي، چې د نازو انا پلار
سلطان ملخي سور غره ته نژدې په یوه جګړه
کې مړ شو او حاجي عادل چې د نازو انا ورور و
د پلار د غچ اخیستلو په موخه د جنګ میدان
ته ولاړ، کلا او کور یې نازو ته پرېښوده، نازو
هم توره تر ملا کړه او د جنګیالیو ځوانانو سره
یې کور او کلا د دښمن له تاړاکه وساتل.

د تاریخي روایتونو پر اساس نازو انا
یوه زړه وره، مهربانه، عابده، صالحه او پر وطن
او خپلواکۍ مینه ښځه وه. هیڅکله بې اودسه
نه ګرځېدله او د چا سره یې مصافحه نه کوله.
هغې به خپلو ټولو زامنو ته په اوداسه شیدې
ورکولې او هغه به یې د رښتینوالي او عدالت
په روحیه روزل، تل به یې خپلو اولادونو ته
ویل:

"هغه څه چې حق وي ټینګ پر
ودرېږئ او هغه څه چې باطل دي ورسره
وجنګېږئ که پکښې له منځه ولاړ سئ، بیا هم
بری ستاسي دئ".

نازو انا خپل اولادونه داسې روزلي وو،
چې سربېره پر کور د مور په لیک او لوست،
باید هره ورځ جمات ته ولاړ شي او دیني او نور
مروج علوم له دیني علماوو او پوهو سپین ږیرو
څخه زده کړي.

د نازوانا د پلار او خُسرګنۍ کورنۍ
ټول شتمن، واکمن، نېکان او مشران خلک وو،
نازو انا ته یې د هماغه لومړیو وختونو څخه
ښوونکې ګومارلې و او هغې هم دغه دود
تعقیب کړی و، د کلي نجونو او هلکانو ته یې
پخپل کور کې لوست او لیک ور زده کاوه او د
نورو مروجو علومو د زده کړې لپاره یې پخپل
مصرف ښوونکې استخدام کړي وو، د کلي
ښځې به یې په اوونۍ کې یو ځل راټولولې او د
اولادونو سالمه روزنه، پالنه او د زده کړې په
اړه به یې لارښوونې ورته کولې، تل به د کلي او
مالت په ښځو پسې تله او هغوی ته یې د وطن
پالنې او مېړانې خبرې کولې، ښځو به هم خپلې
ټولې ماتې ګوډې د هغې په لارښوونو سره سر
ته رسولې، هیچا د هغې خبره نه ماتوله، هغې

په تل د کلي ناوړه ځوانان په لاره کي درول، د حق خوا ته به یې رابلل او نصیحتونه به یې ورته کول.

نازو انا یو عالمه، فاضله، ادیبه او شاعره ښځه وه، نوځکه یې خپلو زامنو او کلیوالو ځوانانو ته د همدغي لاري توصیه کوله، هغې به تل نورو عالمانو او پوهانو ته په درنه سترګه کتل او د هغوی درناوی به یې کاوه. د نازو انا اشعار، لیکني، مضامین او ملي حماسي ویناوي د خلکو د غیرت او پت راپاروونکي وې، د هغې په ویناوو کي هیڅ توپیر نه و او ټول ولسونه یې په ګډه یووالي ته رابلل.

نازو انا واده کړی و، د مېړه نوم یې ښالم خان (شاه علم) هوتک د کرم خان زوی و، د نازو انا مېړه هم ښه غښتلی او پر خپلواکۍ مین پښتون و، څلور زامن یې درلودل، چي نومونه یې حاجي میرخان (میرویس نیکه)، عبدالعزیز، یحیی خان او عبدالقادرخان وو.

په پټه خزانه کي راغلي، هغه وخت چي میرخان (میرویس نیکه) وزېږېده، مور یې (نازوانا) خوب ولیده، چي شیخ بېټني رحمة الله علیه ورته وایي، دا زوی ښه تربیت کا چي لوی سي، لوی کارونه به وکا او په زیارت د بیت الله به ځان مشرف کا او له نسله به یې پیدا سي پادشاهان، چي دین به روښانه کا. نو چي حاجي میرخان وزېږېده مور یې په دیانت او عبادت سره لوی کا او د دین فرایض یې ټول په اووم کال وروښوول او هر کله به یې ده ته نصیحت کاوه، چي ستا په مخ کي ډېر لوی کارونه پراته دي، نو چي لوی شې د خدای عبادت او د خلکو خدمت به کړې، ته خدای پیدا کړی یې د دې لپاره چي لوی کارونه تر سره کړې خلق الله به ستا په خدمت آرام وکا.

میرویس نیکه چي د نازو انا په غېږ کي یې د ملي احساساتو، تدبُر، پوهي او سخاوت لومړی درس زده کړی و، هغه ملي ویاړني چي د میرویس نیکه او ټولو پښتنو ته په برخه شوي دي، هغه د دغي پوهي مېرمني د ښې روزني او تدبیر نتیجه وه.

میرویس نیکه نه یوازي د خپل ځانګړي تدبُر او سیاسي پوهي په وجه کندهار له تېري کوونکي ګرګین او صفوي دولت له سلطې څخه خلاص کړ، بلکي د یو ملي حکومت په جوړولو هم بریالی شو او د یو ملي زعیم په توګه یې د مملکت د چلولو واګي په لاس کي واخیستې، چي بیا وروسته د ده کورنۍ ته د قدرت وار ورسېده او د ده د کورنۍ او قوم څخه ډېر د استعمار پر ضد مبارزین یو په بل پسې راغلل او لاړل، خو که څیري مو، دغو پېښو ته ژوره کتنه وکړو، په دې ملي مبارزو کي، چي د هر راز تېري پر ضد د نارینه و له خوا مبارزه کېده د هوتکو ښځي هم بې برخي نه وې که میرویس نیکه د نیکه لقب ګټلی او د ښه سیاست او تدبر خاوند شوی، نو دا هر څه باید مور د نازو انا د منت مرهون وګڼو.

وایي چې کله حاجي میرخان د مور د وصیت او نصیحت سره سم په ۱۱۱۹ سپوږمیز کال خپل قوم د ګرګین او ظالمانو له ظلمه وژغوره، نو د شکرانې سجده یې وکړه او وې ویل

"خدایه دا هغه کار و، چي ما ته مور سپارلی و او وصیت یې کړی و، دا خو ستا د عبادو بنده ګانو خدمت و، چي ما تر سره کا".

نازو انا د خدای تعالی د مناجاتو په برخه کي ډېر ښکلي اشعار ویلي دي او یو دېوان یې درلود، چي دوه زره بیتونه پکښې وو او په هغه کي یې داسي ښه نکات اداء کړي وو چي نارینه یې هم نه شي ویلای، خو هغسي چي زموږ زیاتي ملي پانګي د زمانې له تاړاکونو خوندي نه دي پاته شوي، نو د نازو انا ادبي مرغلري هم د زمانې د ترخو څخه بې برخې شوي نه دي او موږ ته یې یوازي یوه رباعي

راپاته ده، چې د هغې د ژوند عرفاني او تصوفي اړخ ښه څرګندوي:

سحرګه وه د نرګس لېمه لانده
څاڅکي څاڅکي يې له سترګو څڅېده
ما ويل څه دي کښلې ګله ولې ژاړې
ده ويل ژوند مې دی يوه خوله خندېده

په پورته څلوريزه کې د نازو انا شعري قوت او شعري قريحه له ورايه ځلېږي، د هغې د فلسفي او ديني افکارو څرګند ترې ښه معلومېږي، د ژوند او مرګ او دې دواړو ته د خوشبينۍ او بدبينۍ نظريه يې په ډېر ښکلي انداز سره انځور کړې ده، او د لفظي او معنوي ښکلا پلوشې هم په ځان کې لري.

د نازو انا د شعري فکر پلوشې دومره اغېزه ناکې وې، چې په شلمه پېړۍ کې يې د هند د نامتو عالم علامه اقبال لاهوري احساسات هم په څپو راوستل او د نوموړې شعري ټوټې الفاظ يې په فارسي ژبه څرګند کړل:

شب زار ناليد ابر بهار
که اين زندگی گريه يی پيهم است
درخشيد برق سبک سير وګفت
غلط کرده يی خنده يکدم است
ندانم به ګلشن که برد اين خبر
سخنها ميان ګل و شبنم است

که موږ په عمومي ډول د نازو انا پر شخصيت خبرې کوو، نو د هغې شخصيت له څو اړخونو څخه څېړل کېدای شي، لکه نازو انا د شاعرې په توګه، د توريالۍ مېرمنې په توګه، د پياوړې روزونکې په توګه او تر ټولو مهم يې دا چې د نامتو وګړ پالې په توګه، چې پښتني ټولنې ته يې د مېرويس نيکه، مېرمن زينبې او نورو په څېر د لوړ شخصيت لرونکي بچيان ډالۍ کړي دي.

**مېرمن زينب:**

بله مېرمن چې د هوتکي دورې په ادبي، اداري او دولتي چارو کې يې ځانګړی لوړ مقام درلوده، هغه مېرمن زينب ده، دغه هوښياره، عالمه او پوهه اديبه مېرمن د حاجي ميرخان (ميرويس نيکه) لور او د نازو انا لمسۍ ده، چې له کوچنيوالي څخه يې د هغه وخت مروج علوم پخپل کاله کې د حرم له ښځواو نازو انا څخه زده کړل، بيا يې د قرانکريم زده کړه وکړه او اسلامي احکام او ديني فقهي کتابونه يې د خپلي کورنۍ له ملا (نورمحمدغلجي) څخه ولوستل او ښه زده کړه يې تر لاسه کړه، چې د دې تر څنګ يې په عين حال کې د حرم نجونو او کوچنيانو ته د زده کړې په برخه کې د معلمۍ سپېڅلې دنده هم تر سره کوله.

دا شاعره، اديبه او عالمه مېرمن، چې د خپلې کورنۍ د علمي، ادبي او سياسي ميراث څخه پوره برخمنه وه، د نرمو احساساتو، پښتني روحيې او ملي مميزاتو درلودونکې وه.

وايي چې د شاه حسين په دربار کې به اديبان، شاعران او هنرمندان سره راټول وو، چې زينبې هم د هغه وخت د شاعرانو او اديبانو سره برابري کوله، مېرمن زينبې به تل د شاعرانو شعرونه اصلاح کول، د پخوانيو شاعرانو دېوانونه به يې لوستل او پخپله يې هم خواږه خواږه شعرونه ويل، که څه هم په خواشينۍ سره بايد ووايو د مېرمن زينب له شعري او ادبي ليکنو څخه موږ ته يوازي يوه وېرنه راپاته ده، چې په پښتو ادب کې د دغې وېرنې د ځانګړي اهميت او ادبي قوت له مخې موږ د مېرمن زينب د شعري قوت اندازه ترې لګولای شو. دا وېرنه مېرمن زينب هغه وخت ويلې چې ورور يې شاه محمود هوتک په ۱۱۳۷ سپوږميز کال د شعبان پر ۱۲مه په اصفهان کې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د مرګ خبر يې کندهار ته راغی.

د مېرمن زينب وېرنه د لوړ ادبي ارزښت لرونکې او د هنر په ګاڼه سمبال ده،

چي د خيال او فکر عاطفي تړون يې د مرثيه نګارۍ ټول اصول په ځان کي رانغښتي دي او پر سلاست او روانۍ سربېره د وطن پرستۍ، ملي روحيې او پښتني احساس سمبول هم ګڼل کېدای شي او هغه زړه ورتيا او احساس پکښې ځرګندېږي، چي د پښتني مېرمنو، مېندو او پېغلو د ملي حيثيت په ښکاره کولو کي رول لري.

دغه وېرنه چي د پښتو د ولسي شعر د ساده چاربيتې شکلي سکښت (فورم) لري، په پښتو ادب کي زما په اند لومړنۍ وېرنه ده، چي د ښځينه شاعري له خوا ويل شوېده، موږ دلته د دغي وېرني يوازي لومړي څو بيتونه د بېلګي په توګه رااخلو:

ږغ سو چي وروړ تېر له دنيا سو نا
قــــــــندهار وارڅه په ژړا سونا
زړه مي په وير کي مبتلا ســــو نا
چي شاه محمود له ما جــلا سونا

***

دا روڼ جـــــهان راته تورتم دی نا
زړه د بېلـــتون په تېغ کــــړم دی نا

هوتک غمجن په دې ماتــم دی نا
د پاچــهي تاج مو برهـــــم دی نا

چي شاه محمود تېر له دنيا سو نا
قـــــندهار وارڅه په ژړا ســـــو نا

مېرمن زينب د شعر و شاعرۍ د قريحې او استعداد تر څنګ د مملکت په اداري چارو کي هم د خپل مهال د نارينه وو سره سمه سيالي کوله ، ويل کېږي، چي په حکومتي او اداري چارو کي يې د خپل پلار تر مړيني وروسته د خپلو نوميالیو وروڼو سره مرستي کولې او څرنګه چي وروڼو د دې په درايت او ايمانداری يقين او باور درلوده، نو له هغې څخه يې د يوې مشاوري په توګه کار اخيسته، د مېرمن زينب له رايي او مشورو څخه يې په سختو چارو او مهمو کارونو کي ګټه اخيسته، د هغې مشورې ته يې غوږ اېښوده او په خبرو او مشورو يې عمل کاوه، وايي چي کوم وخت نادر افشار قندهار محاصره کړ، په هغه وخت کي د حکومت ټوله کار روايي د دې مېرمني په لاس کي وه او د محاصرې په پای کي همدا مېړ من له ښاره راووتله او له نادر افشار سره يې د جنګ د پای ته رسېدو مذاکرات شروع کړل.

**اخځونه :**


۱- عبدالروف بېنوا، پښتني مېرمني، دولتي مطبعه، کابل، ۱۳۲۳المريز کال .

۲- حبيب الله رفيع، ملي زاويه، لاهور، ۱۳۷۹ل کال.

۳- محمد هوتک، پټه خزانه، د پوهني وزارت، دوهم چاپ، ۱۳۳۹ل کال .

۴- معصومه عصمتي، کابل مجله، د افغانستان د علومو اکاډيمي، د ژبو او ادبياتو مرکز، پښتو ټولنه، پرله پسې ۷۳۲مه ګڼه، ۱۳۶۰ل کال ثور.

۵- سيد محی الدين هاشمي، مشاهير افغانستان، جلداول، مؤسسه اريک، پشاور، ۱۳۷۸ل کال.

۶- شاه جهان، په پښتو ادب کي د مېرمنو برخه، پښتو اکيډيمي، پېښور يونيورسټي، ۱۹۹۳م کال.

۷- وسيمه حکيمي، پښتو څېړني، پښتو ټولنه، د پښتو څېړنو د نړيوال مرکز د مقالو ټولګه، ۱۳۵۴ل کال.

۸- سرمحقق زلمی هېوادمل، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغونې او منځنۍ دوره)، دانش خپرندويه ټولنه، پېښور، ۱۳۷۹ل کال.




ځېړندوی عاطفه نورستانی
د افغانستان د علومو اکاډیمي

# د هوتکو په دوره کې د ښځو فرهنګي ونډه

د فرانسوي ژبي کولتور، د انګلیسي ژبي کلچر او د عربي ژبي ثقافت چې په دې وروستیو څو اویا کلونو کې په فارسي ژبه فرهنګ بلل شوی د ټولنې د تکامل په بهیر کې ټولو تر لاسه شویو مادي او معنوي پدیدو ته ویل کېږي، چې یوه ټولنه له بلې ټولنې سره یو ځای کوي او بیا یې له بلې ټولنې څخه بېلوي[1].

زموږ ګران هیواد هم له پخوا زمانو راپه دې خوا د ختیځ د لرغوني فرهنګ او د اسلامي دورې د فرهنګ په وده کې خوځنده رول لوبولی دئ. همدارنګه د ختیځ د ډېرو نامتو فرهنګي شخصیتونو د روزنې او پالنې زانګو هم ده، چې د هغو تلپاته آثار د ختیځ او لوېدیځ د کتابتونونو او موزیمونو بډایه پانګه شمېرل کېږي، چې د دې آثارو هغه برخه چې د چاپ په ګاڼه ښکلې شوې ده د علم او پوهې مینه والو ته د بلې ډېوې په څېر ارزښت لري.

که چیرې موږ د هیواد تاریخي بهیر په ژور نظر وګورو هره تاریخي دوره د ځینو ځانګړو زماني او مکاني شرایطو له مخې خپلې خپلې فرهنګي ځانګړنې لري، چې د هغو له په پام کې نیولو پرته نه شو کولای، چې د هغې دورې فرهنګ په آسانۍ سره وڅېړو. نو د دې له امله د هوتکو د دورې فرهنګ هم ځانته ځانګړ تیاوې لري.

هوتکیان چې د هوتک بابا بن باور بن تولر یا توان بن غلجي بابا اولاده دي، نو پر دې بنا دوی د غلجیانو له یوې ځانګې څخه عبارت دي.

د کندهار وضعیت له هغه وخته چې د هوتکو، توخو او ابدالیانو ملي ریاستونه له منځه ولاړل ډېر متزلزل شو. کله به د هندي مغولو تر بریدونو لاندې راغلی او کله به د پارسیانو ستر ګې ورته سرې شوې، چې هر یوه به یې د تصرف لپاره ځان حقدار ګاڼه او یو بل ته یې راز راز پلمې جوړولې. تر هغه چې د اصفهان له دربار څخه ګرګین د پښتنو د پایمالولو لپاره ټاکل کېږي او د یو لوی وسله وال لښکر په ملتیا د کندهار د حاکم په نامه کندهار ته رارسېږي، د ډېر سخت ظلم او ناتار په پیلولو سره د پښتنو ډېر کورونه ویجاړ او ډېر نامتو پښتانه یې د خپلو شخصي غرضونو لپاره قرباني کړه. پښتنو دغه ظلمونه ونه شو زغملای او ټول پښتانه د خپل وخت ملي مشر میرویس نیکه ته ورغلل او د هغه د مدبرانه لارښوونې سره سم راټول او منسجم شول او د میرویس ملا یې وتړله او د دوی په خورا ښه تدبیر سره ګرګین ووژل شو او د اصفهان تخت هم په لړزېدو راغلی، (چې په دې توګه

(1) مصطفی تړدې، کلتور او فولکلور، پښتني فولکلور (د مقالو مجموعه)، د علومو اکاډیمي، دولتي مطبعه، ۱۳۶۵ هـ ش، اول مخ.

په ۱۱۲۱ هـ ق د افغاني هوتکي دولت بنسټ په کندهار کي کښېښودل شو)[۲].

دا دوره د افغانستان په تاريخ کي د ملي غورځنګ او استقلال غوښتني د لوړ احساس له مخي خورا مهمه دوره ده. بې ځايه به نه وي چي په دې پر تمينه دوره کي دښځو فرهنګي ونډه وڅېړو:

د ښځو د ټولنيز موقف ځرنګوالي په هر هيواد کي د هغه هيواد له سياسي او اقتصادي، ټولنيز او کلتوري جوړښت سره نږدې اړيکي لري او په هره تاريخي دوره کي دغه اړيکي خپلي خپلي ځانګړني لري. د ښځي موضوع ځکه د ارزښت وړ ده، چي هغه مور ده او مور بيا هغه موجود دئ، چي په يوه لاس زانګو او په بل لاس نړۍ زنګوي او دا هغه رښتيني واقعيت دئ، چي نه شو کولای سترګي پرې پټي کړو. په تېره بيا پښتنو مېرمنو د پياوړو ميندو په توګه تل لوی لوی کارونه تر سره کړي او افغاني ټولني ته يې پياوړي او اتل زامن وړاندي کړي دي، او په دې توګه يې د ټولنيز ژوند په بهير کي ستر بدلونونه راوستي دي، په پښتني ټولنه کي ډېري نوميالۍ مېرمني تېري شوي، چي د خپلو نه هېرېدونکو کارنامو په اثر يې تلپاتې ژوند تر لاسه کړی او د تل لپاره به زموږ د ملي تاريخ د وياړ شمله وي. په دې مېړنيو مېرمنو کي ادبي، حربي، علمي او سياسي څېرې وينو، چي هره يوه يې د تاريخ په پاڼو کي يو خاص ځای لري او نومونه يې زموږ د هيواد په تاريخ کي په زرينو کرښو کښل شوي دي.

زموږ د هيواد ښځو پخپل مورني محبت او خاصه مينه خپل اولادونه په ښه ډول روزلي او په دې لاره کي يې ډېر کړاوونه ګاللي دي، چي د ستايني وړ دي، ډېر ښه مثال يې د هوتکو په دېرش کلنه تاريخي دوره کي د ښځو فرهنګي ونډه ده چي په ژوره توګه راڅرګندېږي. له نېکه مرغه د دې تاريخي نهضت په شين آسمان کي دوې نامتو، پوهيالی، عالماني، استاذاني، سياستمداراني، شاعراني هغه ځلېدونکي ستوري دي چي بې له شکه يې دغه پېر په خورا ښه شان ځلولی دئ، چي يوه يې نازو انا ده. نازو انا د څو بعدي شخصيت په لرلو سره د (انا) لقب ځانته وګاټه، هوکې! هغې يو داسي انسان وروزه چي د هغه د مشر تابه پر مهال د افغان ملت په ژوند کي ستر بدلون رامنځته شو، چي هغه د يوه ملي حکومت رامنځته کول و.

مېرمن نازو پياوړې روزنکې، نامتو وګړ پالونکې او تکړه شاعره د سلطان ملخي توخي لور د پښتنو د نامتو خان ښالم خان مېرمن او د پښتنو د ملي قايد ميرويس نيکه مور ده. دې مېرمني افغاني ټولني ته د ميرويس نيکه په شان غښتلی او مدبر زوی تربيه کړ. د خپل عصر يوه مېړنۍ ښځه په پوهه، متانت او مېلمه پالنه کې لوی نوم درلود، په (۱۰۶۱ هـ ق) کال د کلات ختيځ ته په (تازي) نومي ځای کي زېږېدلې، په وړکتوب کي يې د مېرمنو او سپين ږيرو عالمانو څخه لوست وکړ او په دې وسيله يې په قلم او کتاب سترګي رڼې کړې، په دې ډول هغه په نجلتوب کي د علم او پوهي زده کوونکې، په پېغلتوب کي د خپل پلار او ورور پر ځای د خپل کور او کلا د ساتني په موخه د يوه تکړه سپاهي په څېر توره تر ملا کړه د نورو جنګياليو سره يې کور او کلا د دښمنانو له تاړاکه وساتله[۳].

نازو انا د يوې پياوړي روزونکي په توګه کله چي يوه نوميالي مشر ښالم خان ته واده شوه د دې د ژوند يوه بله مرحله شروع کېږي،

---

(۲) محمد انور نير، فرهنګ دورهٔ هوتکيان، نګاهی بر نقش فرهنگی افغانستان در عهد اسلامی (مجموعه مقالات)، وزارت اطلاعات و کلتور، سال ۱۳۵۵ ش، ص ۱۱۴.

(۳) محمد هوتک بن داود، پټه خزانه، د پوهاند عبدالحي حبيبي په سريزه، کابل - ۱۳۵۶ ش، ۱۰۱ مخ.

او هغه مرحله یې په خورا ښه ډول تر سره کړې، هوکې! هغې د اولاد په روزنه کې د زړه له کومې په ډېر صداقت او پرهېزګارۍ سره زیار وایست، او په خورا ښه شان یې افغانۍ ټولنې ته د میرویس نیکه په شان غښتلی او مدبر زوی تربیه کړ.

په زانګو کې یې د میرویس په غوږونو کې د خدای ﷻ عبادت او تقوا او خلکو ته د رښتیني خدمت زمزمې کولې او هغه ته یې د فضیلت شیدې ور کولې.

کله چې رالوی شو نو د هغه د ژوند کرښلاره یې په خورا روښانه ډول ور وښودله، چې اسلامي علوم یې زده کړل او له ژورې پوهې څخه برخمن شو، نو خلکو ته یې د لویو کارونو د سر ته رسولو درونده بار او ستر مسئولیت د هغه پر اوږو ورکښېښود او تل به یې ورته نصیحت کاوه، د خپل لیدلي خوب له الهام څخه به یې خبراوه او په دې ډول یې هغه دې مسئولیت ته متوجه کاوه، چې په نتیجه کې یې د میرویس د شخصیت پر جوړښت ژوره اغېزه وکړه، او هغه یې د یو داسې ځوان په توګه ټولنې ته وړاندې کړ چې د پښتنو د تاریخ تېر برم او شان او شوکت او ملي حیثیت یې راژوندی کړ او پخپل مدبرانه خوځښت سره یې دښمن د خپلې پاکې خاورې څخه په مرګ وایست.

هوکې! نازو انا میرویس داسې روزلی و، چې هم توریالی او هم وطنپال و، په سخا کې یې لوی لاس درلود او د ټولنې له اړو کسانو سره به یې تل مرسته کوله. هغه به په هر کار کې د مور نصیحت او لارښوونې ټینګکي په غوږ کې نیولې او د خپل ژوند د لارې مشعل به یې ګرځولې. کله چې خپل مقصد ته چې د خلکو ژغورل او د هغوی سوکالي وه ورسېده نو [illegible] یې د شکرانې لمونځ اداء کړ او [illegible] یې د خپلې [illegible] هغه خبرې او نصیحت چې [illegible] به یې [illegible] تکرار کړې [illegible]

"اې زویه! د خدای ﷻ عبادت او د خلکو خدمت وکړه، ته خدای لویو کارو ته پیدا کړی یې...."

نازو انا د خپلو اولادونو په ملي روزنه کې چې د پښتني میندو تاریخي میراث دئ له هیڅ ډول هلوځلو څخه ځان ونه سپماوه.

د پټې خزانې د مؤلف په قول نازو ډېره باتقوا ښځه وه، ډېر مناجات یې ویلی، یو دېوان یې درلود، چې دوه زره بیتونه یې درلودل او د دې د شعر قوت له ډېرو نارینه ووشاعرانو څخه بهتر و.

همدارنګه له پېړیو پېړیو راهیسې چې افغانۍ ټولنه ودانه شوې پښتنې ښځې له پښتنو نارینه وو سره اوږه پر اوږه په هر کار کې ولاړې او د ډېرو ستونزمنو کارونو په تر سره کولو کې یې له ځانه وړتیا ښودلې ده او له دغې ازمویني څخه بریالۍ راوتلې دي.

د هوتکي غورځنګ په آسمان کې بله ځلېدونکې ستورې چې لومړنۍ ښځینه استاده، سیاستمداره او تکړه شاعره وه هغه زینب هوتکي د هوتکو د ستر مبارز او ملي مشر میرویس نیکه لور وه. د پټې خزانې د مؤلف په قول زینبې له کوچنیوالي څخه لیک او لوست وکړ، قرآنکریم، اسلامي احکام او د فقې کتابونه یې ولوستل او فارسي کتابونه یې ضبط کړل او د هغه وخت له مشهور او لوی عالم ملا نورمحمد څخه یې زده کړه وکړه، هغې ښه شعرونه ویل او د شاعرانو احترام یې کاوه[۴].

دغه عالمه، شاعره او دینداره ښځه د هوتکو د دورې لومړنۍ ښځینه استاده ګڼله کېږي، چې دغې پوهې او عالمې ښځې د میرویس نیکه په حرم کې نجونو او ښځو ته لیک او لوست وروښود چې په دې ډول هغه زموږ د هیواد په معاصر تاریخي کې لومړنی

---

[۴] محمد هوتک بن داود، پټه [illegible] د [illegible] حبیبي [illegible]، کابل - ۱۳۵٦ش [illegible]

استاده بلله کېږي، چې په دې ډول یې خپل اسلامي لوی رسالت په ښه شان سره اداء کړ[5].

د زینب هوتکي له هغو ویل شوو شعرونو ځخه نه یوازې د هغې علمي او ادبي شخصیت راڅرګندېږي بلکې د هغې د سیاسي شعور پوخوالي او سیاستمداري په ښه شان ښکاري، هغه پخپل شعر کې د شاه محمود لوړ سیاسي شخصیت د ارزیابۍ په ترڅ کې د خپل کاکا عبدالعزیز بزدلانه سیاست باندې هم پوهېده[6].

بېله شکه چې زینب هوتکي د خپل ورور د پاچا کېدو په ویاړ خپله وېرنه د میرویس نیکه د وصیت شوي کړنلارې په رڼا کې وویله او د عبدالعزیز پر ځای یې د شاه محمود ټاکنه یو ستر سیاسي بری ښودلی دئ او هیله یې کړې چې ګوندې د دې د پلار دعا او هیله به تر سره شي چې همداسې هم وشول او شاه محمود د اصفهان فاتح شو.

هغه د خپل ورور په مرګ ډېره غمجنه شوه او د خپل دغه غم ژوره اندېښنه یې پخپله مرثیه کې په خورا ښه ډول انځور کړې او دا یې هم سمه وړاندوینه کړې چې د شاه محمود تر مرګ وروسته د هوتکو واکمني رانسکوره او پښتانه به له شاهي نه ګدایۍ ته ورسېږي چې همداسې هم وشول. دا ټول هغه څه دي چې د زینبې د سیاسي شعور، هیوادپالنه او سیاستمدارۍ باندې ښه ګواهي ورکوي.

زینب هوتک د خپل وررو شاه حسین د واکمنۍ په موده کې چې لږ یا ډېر پنځلس کاله وه په کندهار کې وه، د هغه په اداري چارو کې ښه مشاوره هم وه، چې شاه حسین به د هغې مشورې اورېدلې، تر څو چې د کندهار ښار د نادر افشار د لوی پوځ له خوا کلابند شو او دغه محاصره چې نږدې یو کال یې دوام درلود تر څو چې د شاه حسین هوتک جنګیالي له پښو ولوېدل او تدافعي قوت یې پای ته ورسېدی، نو د متارکې د تصمیم په نیولو او د نادرافشار سره د متارکې په خبرو اترو (نېغ په نېغ خبرو) کې زینب حاضره وه[7]، دا کار دا څرګندوي چې زینبې د پاچهۍ د چارو په اداره کې لوی لاس درلود.

د هوتکو په دوره کې یوه بله مېرمن چې د پټې خزانې د مؤلف په وینا د یوې شعري مجموعې خاونده هم وه مېرمن مصري ده، چې د بولاقو د ختکو د بازګل خېل ځانګي د احمدګل قاضي لور وه، لویه عالمه، پوه ښځه وه، د خپل چم ګاونډ ښځو او ماشومانو ته یې د دیني کتابونو درس ورکاوه او د (بي بي) په نوم یې شهرت درلود او د شعرونو مجموعه یې درلوده چې له بده مرغه اوس دغه مجموعه نشته او یوازې یوه منظومه فالنامه چې په شپږو پښتواشعارو مشتمله ده او د زمانې له پېښو ځخه خوندي پاته شوې ده، په لاندې ډول ده:

کـــه الف راشي په فـــال کي
ســـتا خـــوبي ده په مجال کي

په غلــــیم به دي لاس بر شي
کامـــراني ښـــادي به در شي
(ب) په فـــال هرګـــوره ښه ده
د غلـــیم ځـــه اندېښـــنه ده

هـــر مـــراد به دي حاصل شي
بخت دولت به دي واصل شي[8]

---

[5] پورتنی اثر.

[6] مېرمن آرین یون، د وږمو بهېر، د پښتنو د اوسنیو ښځینه لیکوالو او شاعرانو تذکره، پېښور – ۱۳۷۷ ش کال، ۱۱۴ مخ.

[7] عبدالرؤف بېنوا، هوتکیها، از انتشارات الازهر پیشاور، ۱۳۷۰هـش.

[8] کبرا مظهري، د پښتني ښځې موقف او برخه په پښتو ادبیاتو کې، پښتو څېړني (د مقالو مجموعه)، پښتو ټولنه، کابل، ۳۵۹ مخ.




څرنګه چې ښوونه او روزنه د فرهنګ یو مهم اړخ جوړوي او د خپلو ځانګړتیاوو له مخې د بېلابېلو اړخونو او هدفونو لرونکې ده یوازې د ښوونځي او مدرسې په چوکاټ کې نه محدودېږي او په عام مفهوم او په تاریخي لحاظ سره له ټولني او بشري چاپېریال څخه د انساني سلوک، عقل او فرهنګ او ټولنیزو اړیکو لیک او لوست، د علم او پوهې د هیوادپالنې او بشر دوستۍ د زده کړې په معنا ده، د ښوونې او روزنې دغه مفهوم په پام کې نیولو سره ویلای شو، چې د هوتکو په دوره کې پر عنعنوي ښوونې او روزنې برسېره افغاني نجونو او ښځو پخپلو کورونو او حرمسرایو کې له مور او پلار او خصوصي ښوونکو څخه د بېلابېلو علومو زده کړې کړې دي[9].

د پایلې په توګه باید وویل شي:

د هوتکو په دوره کې په مشخصه توګه او د لیکلو آثارو لرونکې دغه نامتو شاعرانې، پیاوړې استادانې او د سیاست په ډګر کې د زینبې په شان یوه پوهه، هوښیاره او نومیالۍ سیاستمداره تېره شوې ده، چې ببله شکه یې په دې دوره کې د ښځو د فرهنګي ونډې د یوه مرکزي رول په درلودلو سره زموږ د ګران هیواد نه هېرېدونکې څېره ده.

د هوتکو په دوره کې د ښځو فرهنګي ونډه په دې توګه خلاصه کولای شو:

نازو انا د یوه مېړه مخې، مېلمه پالې، مشهورې شاعرې او با دیانته مور په څېره کې چې د وطن د دفاع لپاره یې شجاعت او توره وښودله، د خلکو خدمتګارې، مذهبي او متقي مېرمنې په توګه چې فلسفي او مذهبي اشعار یې هم وویل او تر ټولو لویه لاسته راوړنه یې د میرویس په شان د یو باتور، مدبر، پوه او سیاستمدار، ملي مشر روزنه وه، چې زموږ د هیواد د مظلومو خلکو برخلیک ته یې تغیر ورکړ، ببله شکه دا ټولې د نازو انا د زیار او زحمتونو پایلې دي.

همدارنګه مېرمن زینب چې د یوې پوهې، عالمې، شاعرې او لومړنۍ استادې په توګه یې د خپل ورور شاه حسین سره قابو پنځلس کاله د کندهار د چارو په اداره کې د یوې مشاورې او سیاستمدارې په توګه پراخه برخه واخیسته او د کندهار د نجونو او ښځو په ښوونه او روزنه کې یې خپل ملي او دیني وجایب پر ځای کړل او د تاریخ په زرینو پاڼو کې یې همېشنی ځای ونیوه یادولای شو.

پوهاند حبیبي په تاریخ مختصر افغانستان کې دې موضوع ته داسې اشاره کوي، او لیکي:

"دورهٔ سی ساله حکمداری هوتکیان در تاریخ افغانستان از حیث نهضت داخلی و غلیان احساس استقلال طلبی خیلی اهمیت دارد، لذا در دورهٔ مذکور بجهت تشویق و پرورش علم و عرفان و ادبیات و فرهنګ فرصت کمتری بود[10]".

سره له دې د هوتکو تر اداري لاندې سیمو کې علم او فرهنګ د سقوط سره مخامخ نه شو او خپل عادي سیر ته یې دوام ورکړ.

په پای کې د حسن ختام په توګه د نازو انا دغه ښکلې او د فلسفې نه ډکه څلوریزه راوړم:

سحر ګه وه د نرګس لیمه لانده
څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده

ما ویل څه دې کنبلې ګله ولې ژاړې
ده وې ژوند مې دئ یوه خوله خندېده

(9) محققه ساهره کریمي شریف، په افغانستان کې د ښځو د ښوونې او روزنې تاریخي بهیر، پېښور، ۱۳۸۷ ش، ۱۱۷ – ۱۱۸ مخونه.

(10) پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان لنډ تاریخ، پېښور، ۱۳۷۸ ش.

استاد بېنوا:

# د یتیم اوښکي

د هغه لستوڼي لاس ید بیضا دئ
چي پرې وچي کاندي اوښکي د یتیم
**(حمید بابا)**

د یتیم اوښکي!

هو! د یتیم اوښکي څو بې قدره د اوبو څاڅکي نه دي، او نه هغه اوښکي دي چي تاسي په عشقي افسانو کي لوستلي دي...

د دې اوښکو سرچشمه هغه مأیوس زړه دئ، چي د ناامیدۍ په څپو کي پورته کښته کېږي او نه پوهېږي چي د خپل نجات لپاره کومي خوا ته وتپېږي...

دې اوښکو ته د بې قدرۍ په سترګه مه ګورئ! د دې اوښکو له هر څاڅکي کېدای سي چي د لوی خدای ﷻ د قهر او غضب ډېر فنا کوونکي سېلابونه راکوز سي او هم کېدای سي چي د رحمت دریاب پر جوش راولي، په دې اوښکو کي د خدای رحمت او غضب دواړه پټ دي...

نو راسئ لږ د یتیم د اوښکو سرچشمې ته په ځیر ځیر وګورئ! لږ مو غوږونه د یتیم زړه ته ورنژدې کړئ، هغه د اضطراب او یأس غورځنګ واورئ، نو بیا پر خپل زړه لاس کښېږدئ، وګورئ څومره تفاوت دئ، ستاسي د اطمینان او د هغه د اضطراب؟

د یتیم سرو سترګو ته ځیر سئ، کوم وخت چي تاسي ته د اوښکو ډکي سرې سترګي در واړوي تاسي څه حس کوئ؟

کاشکي زما سره دومره قوت وای چي ما د ده د کتو پوره ترجماني تاسي ته کړې وای.

یتیم په همدې کتو کي تاسي هر یوه ته وایي، چي: زه هم تا غوندي انسان یم، زما او ستا په خلقت کي څه فرق نسته، څه وسوه چي ته پلار یې یا پلاردار، او زه نه پلار یم او نه پلار لرم. دا خبره ما د انسانیت څخه نه سي ایستلای، چي ته په نس موړ او په تن پټ یې او زه په نس وږی او په تن لغړ یم، زه خپل ځان پېژنم چي هیڅ نه لرم او یتیم یم، خو نه یم خبر چي ته ځان پېژنې که نه؟

ته زما همنوع یې، ته کولای سې چي ما هم د خپل ځان غوندي له دې فلاکته خلاص او مرسته راسره وکړې، دا ستا انساني وظیفه ده، زه ستا همنوع یم نه پوهېږم چي ته ما څه بولې؟

اوف: زه نه سم کولای په حقیقي ډول د یتیم د اوښکو ترجماني وکړم، بې دردان پر ما خاندي او هر څه هر څه وایي، مګر هغه څوک چي دردمند دئ هغه پوهېږي چي د یتیم اوښکي د کم دریاب مرغلري دي؟

اې بډایانو! د خدای رحمت په انتظار کي دئ، ګورئ چي کم د خدای دوست به د یتیم اوښکي ورپاکي کړي او پر سر به یې د مهربانۍ لاس ورتېر کړي.

یتیم لستوڼي هم نه لري چي خپلي اوښکي پخپله وچي کړي، نو اې د لویو لاسو او اوږدو لستوڼو خاوندانو! لږ د یتیم اوښکو ته وګورئ، او د خپلي مهربانۍ په لستوڼو یې وروچي کړئ، د خدای رحمت تاسي ته په انتظار کي دئ.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department



چي جهان ورته حيران وي چي خجل ورته سيالان وي
زما د هر وګړي سترګي آئينه د سکندر کې
جهاني چي پکښې ليکي د زمري اولس نظمونه
هر آواز يې د بلال کې هره لوښت ورته منبر کې

عبدالباري جهاني